

# کندهار



زموږ محبوب ټولواک او متدین پاچا همایوني معظم اعلیحضرت
سږ کال د شاهي ارګ په مسجد جامع کښې د کوچني
اختر د لمانځه اداکولو وروسته

# زموږ د ګران پاچا بختور جلوس

د لړم شپاړسمه نېټه زموږ په ملي تاریخ
کې خاص قدر او مقام لري داځکه اته دېرش
کاله پخوا په همدغه لویه او بختوره ورځ
زموږ محبوب ټولواک او ترقي غوښتونکي
پاچا المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه د
افغانستان چارې په لاس کې ونیولې او د
افغانستان ستر واکدار شو.

زموږ ستر تاجدار د خپل مدبر او نامتو
پلار اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه
غازي اصلاحي نقشې او ارتقائي پروګرامونه
یو پر بل پسې تعقیب او د افغانستان د ټولو
چارو د سمون او پرمختګ په لاره کې د افغانانو
نیکه لارښوونه وکړې او کوي ئې او د شاهانه
ذات تر ستر قیادت لاندې زموږ د ولس د مادي
او معنوي انکشاف لپاره د حکومتونو له خوا
پر له پسې کوښښونه شوي او دادی اوس هم
زموږ هیواد د اجتماعي تحول او تکامل پر خوا
چټک ګامونه اخلي او زموږ د ملي ژوند
سمون په لار کې ګټور فعالیتونه کیږي.
زموږ نجیب او شاهدوست خلک اوس
د خپل محبوب پاچا د لوړ قیادت او بختور
سلطنت تر سیوري لاندې د امن ژوند سرته
رسوي او د ملي نیکمرغۍ، هوسایني او لوړتیا
پړاوته ځانونه رسول غواړي.

نن زموږ ولس د خپل بهترین اساسي
قانون په برکت د دیموکراسۍ پر خوا ګامونه
اخلي او د اجتماعي عدالت او اسلامي مساوات
د ستروښېګڼو څخه ګټه اخستل غواړي.
د اسلامي اصل سره سم مېرمنوته د ژوند ټول
مدني او اجتماعي حقوق حاصل شوي او هغوی
کولای شي د خپلو افغاني وروڼو سره څنګ
په څنګ د هیواد په عرفاني، کلتوري، صحي
صناعتي، اداري، سیاسي او نورو مدني او اجتماعي
ساحو کې برخه واخلي او لکه څرنګه چې
د دغې پولې څخو کلونو نیکو خدمتونو او فعالیتونو
ثابته کړې ده چې زموږ منوري او رسېدلې مېرمنې
واقعاً د لوړ استعداد او لیاقت خاوندانې او
خپلې ورسپارل شوې وظیفې په پوره مهارت
او صداقت پرمخ بیائي.

د دیموکراسۍ د ستر اصل له مخه زموږ په
هیواد کې د نړۍ د دیموکراتو هیوادونو په
څېر د دولت درې ګونې قواوې لکه مقننه قوه
(ولسي او مشرانو جرګې) قضائیه قوه (ستره
محکمه) او اجرائیه قوه (حکومت) مستقل او د
پوره صلاحیت په چوکاټ کې خپلې وظیفې
پرمخ بیائي او درې سره قواوې د دولت د مشر
معظم همایوني اعلیحضرت تر ستر قیادت
لاندې یو د بل په همکارۍ د هیواد چارې
اداره کوي، او حکومت د مقننه قوې په اعتماد
تائید او مشوره د افغانستان د پرمختګ او ملي
چارو د تنظیم په لار کې فعالیت او خدمت
کوي.

افغانستان اوس یو د انکشاف په حال کې
هیواد دی، زموږ د حکومت او خلکو کوښښ
دادی چې خپل هیواد د ژوند په ټولو برخو
کې پرمخ بوزو او د اوسني عصر د ټولو مادي
او معنوي ښېګڼو څخه ئې ګټور کړو او د خپلو
خلکو د بشري او ذهني قواؤ او د هیواد د طبیعي
منابعو په کار اچولو د لارې د خپلو هیواد
والو ژوند سم او د ارتقا پر لور بوزو.
نو راځئ چې د خپل ګران هیواد د اعتلا په
لار کې د خپل محبوب پاچا او خلکو د تمنیاتو
سره سم د فداکارۍ او صداقت څخه کار واخلو
او خپل وس په دغه نیکه لار او ملي هدف کې
وقف کړو، او په دې ډول ځان او لوئی افغاني
ټولنې ته ستر خیر او ګټه ورسوو.

(ايو بې)

# د ملګرو ملتو د پرانستلو

## تاریخي ورځ

د عقرب دوهمه نیټه چه د عیسوي کال د اکتوبر څلیرویشتمه نیټه کیږي د ملګرو ملتو د بین‌المللي موسسې د پرانستلو لویه او تاریخي ورځ ده .

شپږویشت کاله د مخه په همدغه ورځ په نړۍ کې د جګړې د مخنیوی، اجتماعي عدالت ، مساوات او سولې د ټینګولو د ملتونو د خپل واکي او بشري حقوقو

د ساتنې ، استثمار او استعمار د مخه ورلو او د عالم بشریت د مادي او معنوي لوړتیا، نیک‌مرغۍ او هوساینې له کبله د نړۍ والو د عدالت غوښتنې ، حق پېژنې او بشر دوستۍ

د مفکورې په پیروۍ د ملګرو ملتو د جهاني مؤسسې د پرانستلو، د همغې دستور اساساتو د منځ ته راتللو د لارې د ټولو انسانانو ترمنځ د یووالي او همکارۍ تړون وشو او وئی

غوښتل چه د ټولو نړۍ والو په ګډون یو واحد بین‌الاقوامي مؤسسه جوړه شي چه د (جامعه ملل) تر پخوا نۍ ټولنې ډیره مجهزه ، پیاوړې او د ټولو نړۍ والو

په دردو خوړل شي کوم چه د نړۍ تر دوهمې جګړې د مخه موجوده وه او د همغه وخت د ځینو لویو هیوادونو لکه ایټالیې او داسې نورو له‌خوا د جامعه ملل مقررات

مات شول دوهمه جهاني جګړه جوړه شوه نو هغه پخوانۍ بشري ټولنه هم د منځه ولاړه .

د نیکه مرغه نړۍ وال د ا ځل ځکه چه د دوهمې لوئې جهاني جګړې ترخو خاطراتو او زیاتو ځاني او مالي بربادیو ډیر بیر ولي وه نو د ګټورو تجربو له کبله

د ملګرو ملتو د مؤسسې ګټلو پر خوا شول او د نړۍ لویو او وړو هیوادونو د یوې خوا د ملګرو ملتو د غړیتوب په منلو سره د دغې

جهاني مؤسسې حیثیت، صلاحیت، قدرت او ارزښت ورځ په ورځ زیات کړ او د بلې خوا ئې د اوښو د له‌چه د نړۍ بېل بېل ملتونه او انسانان کولای شي د بېلو بېلو افکارو

جلا سیاسي او اجتماعي عقایدو علیحده ملتونو ور ژیمونو په لر لو سره د سولې په ډول ژوند وکړي او خپل اختلافونه او کړ کیچونه د خبرو د لارې د حق او عدالت

له مخه حل کړي او په نړۍ کې دایمي سوله جوړه شي .

د ملګرو ملتو بین‌المللي مؤسسه چه لوی ارګانونه ئې : لویه اسامبله ، د امنیه

شورا ، اقتصادي او اجتماعي شورا ، د قیمومت مجلس ، بین‌المللي عدلي محکمه او دارالانشاء دي ، لومړی ځل په سانفرانسسکو کې د نړۍ د پنځوسو هیوادونو له خوا

د همغه د منشور په لاسلیک سره منځ ته راغله او وروسته کرار کرار نور هیوادونه پکښې شامل شول .

د ملګرو ملتو د بین‌المللي مؤسسې بېل بېل ارګانونه چې هر یو د پوره صلاحیت او بېلو بېلو وجایبو لرونکي دي خپلې وظیفې په ښه توګه اجرا کوي

او په دغه شپږ ویشت کاله موده کښې ئې د نړۍ والو د نیکمرغۍ او مرفه ژوند په لار کې نه هیریدونکي خدمتونه کړي دي .

(نور په دوهم مخ کې)

# هیله

په هغه وخت کې چې ته د ښایست غرور ایوانې کړې شانې ئې د ماتو زړونو پیوندلو په هیله د ته لرې ·

هغه کړې چې ستا د حسن د بازار پتنګان ستا د مخ

د شمع د سودا هوس لوخې پوخې کوي د ژوند څخه تنلي هم هېر وه ·

هغه ساعت چې ستا سره د خپلو سترګو د اړولو او د اړولو پیالې د د رمندو د مستۍ مسابقه شروع کړې وې ·

ته! بلې! ته د همدې جهان د تودو او بو تږې پیاد لره·

په هغه شیبه کښې چې ستا د تشو خبرو تږې تانده لیانده کړې کړې ګوډې هغه په یاد لره څوک چې د دشتیا ویلو په ګناه د ژوند د برو ترخو سره مخامخ دی·

بیا هم هیله وه :

دلته د غرور نیلي څغلول او دلته د مستۍ پیالې بوالې نوشول او په ګناه ده ·

دلته د ژوند ناز د ځان حق بلل نواب نه بلل کېږي داجهان د زړونو سره مینې او محبت زرغونه وي او د اوږدنیا د ځان غوښتنې لمبه سوځي دلته د حساب تله ستا د ناز په ګټو لوړه ځي هیله د. بیا هم هغه وړې الفې

چې د ناامیدۍ سترګو به وړو کاسو کې اوړي د ااوړي د اړمانونو طوفان جوړوي او د هوسو د پیالو عمر نور هم اوږده وي منې چې ستا خیالي قدمونه د ګلونو په وړوړو پاڼو اېښودل کېږي ·

یقین لرې چې د اوربل نیازه ستا پر ښایسته مخ سیوری اچولای شي د اهم منې چې د ښایست بازار د پر لته دی که هم دغه حقیقت منې نو ... د زړونو د تل د اړمانونو د پیدا کولو تلوسه د ځان سره ساته ·

د اړمانونه تر سره کېږي مګر؟!

هله چې خپل د ښایست سره د دغه ښایسته باغ مړاوې ګلان هم هېر نه کړې او د خپلې غوړېدلې غوټۍ سره د رژېدلو پاڼو پر لور د اندیښنې وړ مې ته اجازه ورکړې چې تا کړوه کړي ·

کومې خو! ته؟

هغه لوډې ته چې د نامرادۍ باد ستا د نګه ګلان رژولي وي او ستا د ماحول بر م بې وړې وي ·

کتلای شې ؟

بلې! هغه ستا د تورو سترګو په منځ کښې د حقیقت وړانګه ستا د کسې میلمنه ده هیله ده بیا هم هیله!

وګوره جهان نه ځان!

کندهار نوی ښار — محمد بن ژواک

د میزان ۱۰ ۱۳۶۰

(د ۱ مخ پاتې)

## د ملګرو ملتو ...

دغې جهانې موسسې په خپل شپېږویشت کلن عمر کې د نړۍ د ټولو انسانانو د نیکمرغۍ، هوسایني او مادي او معنوي پرمختګ لپاره ګټور اقدامات کړي او کوي ئې چې په هغو کې د استعمار د منځه وړل، د سولې ټینګول د زیږوالو دلویو جنجالونو حلول او داسې نور جهاني کړکیچونه د یادولو وړ دي ·

ملګري ملتونه اوس هم لوئې مسئلې او مشکلات په مخ کښې لري او په هغوی کښې د عمومي بې وسلې کولو، داټومي او نورو خطرناکو وسلو د منځه وړل او داسې نور مسایل شامل دي ·

ننچې د ملګرو ملتو د بین المللي مؤسسې د پرانستلو ورځ د ه مو پږ د نورو نړۍ سره په خیر د غه ستره ورځ نمانځو او د ملګرو ملتو خدمتونه او فعالیتونه په قدر دانې سره یادوو او یقین لرو چې د ملګرو ملتو د فعالیت دلاري به د نړۍ څخه جګړه او نور جنجالونه د منځه ولاړ شي او انسانان به د سولې او امن په فضا کې نیکمرغه ژوند وکړي ·

په پای کښې د ملګرو ملتو د پرانستلو د تاریخي ورځې د راتلو له کبله ټولو نړیوالو ته مبارکي وایو او د دغې جهاني مؤسسې په سیوري کښې د خپلو خلکو او نړۍ والو دایمي سوله، نیکمرغي او لوړتیا غواړو ·

(ایوبي)

پوهاند عبدالحی (حبیبی)

# خوشحال خان د آیډیلزم او ریلزم پر پیچومې

## آیا د خوشحال هنر د هنر لپاره ؤ، که د ژوند لپاره؟

د آیډیالیزم یعنې اصالت تصور او خیالیت ریښې د انسانانو په شاعرۍ کښې ډېرې قدیمې دي هر کله چې انسان له خوړا قدیمو

زمانو څخه د فطرت په جذباتو او ولولو کښې د خپلو پټو میلاناتو ترجمانې د شعر په ژبه وکې له هغو اشعارو غیر مادي او روحاني

او د عالم بالا څخه یو منبع درلود او شاعر د هغه غیر مشاهد او خیالي عالم استاځې گڼل کېدی.

د یونان قدیم اساطیر وائي چې آمفیون د جو پیټر زوی. هغه میتالوژیك شاعر او سندر غاړی ؤ چې د تبې د ښار په ودانولو کښې

به ئې په چغږ او سحرناکو ناړو خپل ارغنون واهه، او دې سندرو به داسې اثر درلود، چې کاڼي به چاودل، او شاعر ته به ئې د احفستل

او ده به د کلا په جوړولو کښې کار دول د جو پیټر له لوري څخه یوه (موس یا میوز) د شعر الهه ده، چې شاعرانو به د هغې د جلال او

جمال له لوړه عرشه الهام اخیست د شعر د خیالي دوایاتو دغه لوړه افسانه ډېره پخوانۍ ده خو به دې

نو دې ډېر پوه کښې امانویل کانت د جرمنې مشهور فیلسوف او محقق د آیډیالیزم او خیالي شاعرۍ

مکتب په مرتب ډول وپرانست، دی وائي چې هنر او آرټ پخپله مطلوب او بالذات مقصود دی نه د کوم بل غایت لپاره

د اهغه نظریه ده، چې آرټ د آرټ لپاره

بولي، او هغه په یوه مجرد او غیر مادي ډینامیزم پورې مربوط گڼي، او وائي

چې د دنیا انسانان خو په نژاد او جنس او وینه او مذهب او مشرب کې سره مختلف

دي، مگر د دوی په شعر او آرټ کې یو ډول وحدت او د معنوي تجانس او د



خوشحال خان

افکارو هارمونې شته، او دا خبره ثابتوي چې د انساني آرټ منبع یوه آسماني او روحاني مشترکه او واحده

سرچینه ده، زموږ شرقي مفکران

او شعر اهم آرټ لره د جمال یو عالي او آسماني غیبي منبع مني، او مخصوصاً صوفیان خو بل څه نه وېلي او نه ئې مني.

شیللر: د جرمنې یو آیډیالیست شاعر دی، دی د آرټ د غه الهي او جمالي غیبي انتساب په یوه خوږه لطیفه او خوږه قطعه کښې داسې بیانوي:

«لوی خدای خپلو بندگانو ته وویل چې دا ځمکه ستاسې ده، هر څوك دې خپله برخه ځنې واخلي. خلق ولاړل د هغا نانو او زمینداران و ځمکې او بڼې

وا خستل سوداگروا پیسې او مالونه یووړل، ملایان په حجرو کښې کښېنا ستل کشیشانو گرجې ونیولې پاچها نو ملکونه او

خزانې واخیستې.... د ځمکې مال دولت وویشل شو، خو چې د شاعر وار راغی څه نه وه پاته ده پر خدای عرض وکړ: چې ای لویه خدایه!

زه خو ستا یه مخلوقاتو کې تر ټولو ډېر نیږدې یم خو څه مې نه وموندل، تش لاس پاته سوم خدای وویل: ته

چیری وې، خو خپله برخه به دې وړه شاعر وویل. لویه خدایه! هغه وخت خو زه ستا د عرش په غولي کښې گرزېدم تا ته مې کتل، ستا، کلام

ته‌می غوټۍ، ته په آسمانی میومست وم څکه‌می د محکی نعمتونه هیر شول ... خدای وویل: اوس خو تاله په مځکه کښی څه نه‌سوه پاتی نوځه، ستا یم، ته‌تل ځما په درگاه کی

اوسه ستاځای دلته‌دی، دلته» اسلامی عرفا هم لکه غربی مفکران، دجمال او آرټ مبدأ په یوه ماوراء المادة دنیا کی لټوی، او «مولانا جلال الدین بلخی» هم دهغی غیبی

دنیا په یادسندری وائی او خپل آرټ دهغی معنوی او روحانی دنیاد یوه وراڼه انعکاس اثر، او دهغی نړۍ د یاد او سوزو گداز گڼی:

بشنو از نی چون حکایت میکند
وز جدائیها شکـــایت میکند
کز نیستان تامرا ببریده اند
وز نفیرم مردوزن نالیده اند

(مثنوی مولوی)

هم دغه مقام دی چی د اسلام لوی پوهنیال حجة الحق «ابن سینا بلخی» هغه‌ته اشاره کوی:

«هبطت الیک من المحل الا رفع ورقاء ذات تعزز تمنع» نا‌بی وکوری چی د آرټ آیډیالی مبدأ دقدیم یونان او اروپا او د اسلام دصوفی او مفکر او شاعر ترمنځ مشترک دی، که څه هم یونانی مبدأ فقط

یو خرافی او میتا لوژیک روایت دی، او دجرمن شیللر هم تش خیال محلولی دی او اسلامی مفکرین هم له یوی داسی غیبی دنیا او غیرمادی او نامحسوس لوړه مقامه

گڼی دی چی انسان هغه‌ته ژلیدلی او نه‌ئی ایدلای شو څکه چی هغه یوه ملکوتی ماوراء المادة او میتا فزیکل دنیاده، خو بیاهم دغه فکر او دغی تیوری په قرنو قرنو

د انسان په دماغ حکومت کړی دی او د آرټ هغه عالی مبدأ چی یوه یونانی آیډیلست قرنی کوله هغه د بلخ او قونیی قلندر هم تصور کړی ده. او کله چی صوفی پښتون شاعر

رحمان بابا دشعر او فنون دغوی، نو د مولانا بلخی نیستان د ا په یاد دی، او په هغو میومست ښکالو له کومو جامه چی دیونان پخوانی شاعر یاد جرمنی پیاوړی

مخنو دمست وه آیډیالزم وائی: آرټ پخپله مقصد او هدف دی، بل غرض نلری. دشعر، موسیقی نقاشی او نورو نفیسو صنایعو د الهام منبع «عالم غیب» دی.

خو د ا تول نفیس صنایع او د آرټ درنی ځانگی د

دظهور او خارجی تحقق لپاره له «عالم شهود» او مادی محسوساتو څخه کار اخلی. تر اوسه هم د انسان پوهنی او طبیعی علومو، دیوه آرټیست او فنکار د احساساتو

او جذباتو لپاره کوم مادی او طبیعی مقیاس ندی کشف کړی نو څکه داصالت تصور او آیډیلزم طرفداران د آرټیستیکی الهاماتو او لیاقتونو لپاره یو عالم غیب

او عرش الهی فرضوی. او آرټ د الهی جمال او غیبی ښکلا یو انعکاس او نماینده بولی، او زموږ صوفی شاعر شیخ متی خلیل (کلات بابا) دغه مقصد په څه څرگنده ژبه بیانوی:

پر لویو غرونو په دښتو گښی
په لوی سهار په نیمو شپو کښی
په غاړه، یو غ، او ښپیلکو کښی
یا د ویرژلیو په شپیلو کښی

ټول ستاد یاد نارې سوری دی
د استا دمینی ننداری دی
غاوند، ښکلی ستا جمال دی
ښکاره‌ئی لوړ په لوړ کمال دی

که ورځ، که شپه، که پیری که کال دی
ستاد قدرت کمکی مثال دی
ستا دلسوزونو یوه دنیا ده
دلته چی څوک ده تما شاده

د اوه د آیډیالیزم څینی څرگند مبادی په شرقی او غربی ادب کښی، چی د انسان د آیډیالوجی او فکری ارتقا او ادبی هر کاتوشمزی گڼل کیږی مگر هر څوک نی

چی انسان دمیټریالزم یعنی مادی فلسفی پرڅر گرمنکی ولاړه او حسی او تجربی فلسفه خپره شوه، نود پخوانی آیډیلوجی په مقابل کښی، د ریلزم د فکر یو نوی مکتب

یعنی حقیقت او ایجابی فلسفه‌ور دیدی، چی ددی طرفداران خپل ټول مبادی د (تجربی او عقل او حس د حقیقت) پرستوی دی دوی آرټ یو انسانی او مادی مخلوق گڼی

او فقط د ژوندانه دښیگړو او اجتماعی او حیاتی مقاصدو لپاره ئی استعمالوی.

دوی وائی چی هنر د انسانی ژوندانه نتیجه ده، او ارتفاعی شی دی. او آهنگ چی دشعر او موسیقی اساس دی او هم نقاشی او حتی رقص او سرود او ټول مستظرفه

صنایع د انسان د کار د آسانتیا لپاره دي .

رقص د کار د مخصوص اشکال دي، دا ستر لیاد خلکو تښا د دوی پخوانو اسلافو هغه حال ښئي چې هغو وحشي انسانانو به د ویښو ډیرښي ځنګله را ګښلې او ځنګه به ئې ځانونه ورته کېږول چې به هغو ګیډه مړه کړي . د امریکا سره پوستان تراوسه هم دغه ډول حرکاتو په ډول ناڅي ، چې هغه به دې چم ښکار کاندي . دوی هر وخت د ښکار په انتظار د غرځو په دود ایښله کوي او د دوی د آرټ مبدأ صرف مادي ده، له ژوندانه سره مربوطه ده

کوم غیر مادي او غیبي محرك نلري په دې ډیلیسټك تفکر کښې فروید ورو ستنی سایکا لوجسټ دوني اغراق کوي، چې ټول فنون او صنایع او انساني اخلاق او روحي

محرکات او تاریخي حوادث سیاسي او اجتماعي انقلابونه پر تناسلي خواهش بنا کوي ، او وائي چې آرټستان ټول هغه خلك دي ، چې د تناسلي محرومیت زجر ئې ليدلی، او د دغه زجر تلافي په خپل هنر کوي .

عجیبه خو دا ده چې یوه یو هنیال یو کتاب لیکلی دی د ( کار او ریتم ) په نامه او دی ټول میوزیکل آرټ خاص د کار لپاره بولي . او دا ثابتوي چې میوزیك خاص

د کار د تسهیل لپاره پیدا شو، دا : له ریلسټانو حقیقیون وائي : چې ژوند یو حرکت او فعالیت دی او ادبي ژوند هم د دغه حرکت سره پرانقلابي لور ملګري دي، انسان

د تکامل او بشپړ توب پر خوا روان دی او د دغه تکامل لپاره یو علمي فارمول هم سته . چې د بشپړ توب (تکامل) حرکت له خپله مرکزه په بعد کښې د مربع په حساب

سرعت مومي او آرټ هم تل په دغه سرعت د انسان د ژوندانه د ګټو او اړتیاو پر مخ روان دی ، ځکه نو دوی وائي : چې آرټ د آرټ لپاره نه دی ، یعنی بالذات

مقصد نه کیدای، بلکه تل د ژوند خادم دی او آرټ د ژوند ، د دوی لپاره هنري مسلك دی، دا ډله مفکران او س ترقي پسندان بولي او د دوی آرټ هم یو هنرقي

او آلي شی ګڼل کیږي د دې ډلې هنرمندانو د هنر مبدأ خپله ژوندون او ماده او عمل او کار او اجتماعي او انساني سایکلوجي ده ، دوی آرټ د ژوند لپاره غواړي ، او

د انساني طبقاتو په ژوند کښې ئې د یو مؤثري وسلې په ډول استعمالوي او نن ورځ د وګړي ادب پا ترقي

پسند هنر په نامه ډیر خلك د هنر تجدد مدعیان دي او غواړي چې لکه ساینس ، هنر او آرټ هم د انساني بشپړ توب په مقاصدو کښې د اقوام په ډول استعمال کاندي بلینسکي د دې ډول آرټ یو پیشوا دی : چې ګمونه

آرټ به په اجتماعي روابطو کښې د ژوندانه لپاره وي ، او نوی ادب به پر نوو مبادي او انتفاعي لارو ځي، د انسانانو محرومه ډله به خوش بخته کوي، او ادبي وزلو

او بې اسرو په جونګړ و او د خوارانو په کونډلو کښې به ګرزي، او دغه نو یو حقیقي آرټ دی .

ن د دغو دوو ډلو هنرمندانو ځینې نی په هر ځای کښې او ریدلي کیږي ترقي پسندان وائي چې دا ید یلسټانو هنر جامد او غیر مفید او صرف تخیلي دی انسان له تکامله

محروم کوي او دغه خیال پرستي ده . چې انسان ئې په ډېرو اجتماعي نارو غیو اخته کړی ؤ .

که مونږ دغو ځینو ته ځیر سو دا په ښکاره سي، چې

نزاع لفظي ده . او د یوه ترقي پسند یلسټ غایي هدف هم هغه دی، چې یوه آیډیلسټ هنرمند به ئې تصور کاوه .

درحیرتم که دشمنی کفر و دین چراست ؟
از یك چراغ کعبه و بتخانه روشن است

حقیقت خو دا دی، چې آرټ مبدأ د جمال دی، او په کائناتو

کې هر ځای په هر شي کښې د جمال نندارې ښکاري، شعر د کلماتو او الفاظو او تخیل جمال دی ، موزیك د نغو او آهنګو نو جمال دی، رقص د بدني حرکاتو جمال دی

نقاشي د اشکالو او خطوطو جمال دی ، خو فرق دا دی چې دغه ښکلا د جمال د کوم مقصد لپاره استعما لیږي ؟ که یوه آیډیلسټ فنکار ، انساني ښکلا په تخیلي او

تصوري ډول ستایله ، او سني ترقي پسند هم دغه جمال ستایي ، او دده د هنر سرچینه او مبدا، هم هغه عمومي ښکلا ده، خو دا ډله ئې د انسانانو د حیاتي مقاصدو لپاره

استعمالوي که نه وي ، ماشین او سپاره او جوغ او د کار توري خیرني آلې خو دی هم نه ستائي ، او نه د میکانیزم په ذلفو او جمال بودي بدلي وائي . خو مونږ به

دې ډلې ته حق ور کوو، چې د آرټ جمال مقاصد د ژوند د تنظیم او د انسان د ارتقا او ښېګړې لپاره استخدام

کاندي او آرټ يو حياتي شی دی ګرځوي اما کله

دانسان فطري ميلان يو مجرد جمال او آرټ ته هم دی چې د کوم غرض لپاره نه وي نو يو آرټ دی، او نه کوم شعر بلکه د روحاني تسکين او وجداني آرام لپاره ترنم

کوي، باغ او ګلزار ګوري او شعر وايي، بالتالي چې دا هم د انسان يو روحي ضرورت دی. او هم ګمان کوم چې ترقي پسند به هم دغه روحي اړتيا لري .

وايي چې د انګريزي مشهور اديب او هنرکار شکسپير په خپله ډرام نويسۍ کې دغه او مسلکو لحاظ کړی دی . آيډيلزم او ريلزم ئې سره ګډ کړي دي، او يو مرکب

مضمون ئې عملي جوړ کړی دی، چې ډېر مفيد او خوږ او د تناول او سهل وړ دی .

که موږ د شرق شاعر ته دقيق سو، نو ده کار لامخ کښې شرقيانو کړي ډېر کثر هنرکاران وه، چې دوی د آيډيلوجي د آسمان په کنګرو ګرځيده، مګر د انسان دژوندانه

او حتی طبقاتي ښېګړو نظر ئې هم درلود، تاسی د سعدي آيډيالي تغزلات او قصائد ولولی، بيا نو ګلستان او بوستان هم وګوری چې دا سحر کار هنرمندان او آرټيسټه

بلا کوي؟

زموږ هنرمند هنرکار او ډېر مشهور شاعر، خوشحال خان هم په خپل ادبي کې دواړې خواوې سره ګډې کړې دي دده آرټ د ژوندانه لپاره داسې استعمال شوی دی چې د

آيډيلزم او يا د هنر د هنر له پاره ئې هم ندی پاېللی، خوشحال خان که شاعر ؤ، خو يو جنګجوی سردار هم ؤ، او د قوم مشر هم ؤ، دده هنر ژوندۍ، او ژوندانه ئې هنر ؤ. کوم وخت چې بې د

مينې په معنوي دنيا کښې يو پوخ آيډيلسټ ؤ، نو بيا ئې مجرد عشقي سوزان اشعار ويل، او د آرټ تخليق به ئې له دې جهته کاوه . چې په خپله د خپل آرټ د روحي تسکين

لپاره دده ته ضرور ؤ او په دغه تخليق کښې ده کوم بل غايت او هدف نه درلود، دا ځکه دده آرټ خاص د آرټ لپاره ؤ، آيا دغسې روان سليس او خوږ غزل تاسې ته

په خپله خوږه پښتو کښې پس له ډېرو روزانه دماغ فرسايو او روحي مجروميتونو خفګه خوند درکوي؟

آيا دغسې مجرد آرټ انسان له يکار نه دي؟ زما يو سپين ږيری باذوقه متقي او فقيه استاد ؤ. چې د احاديث او تفسير

او فقه او ادب ترجمې درسونه ورو ويسته به ئې ويل: انسان روحي تفکر او تفريح ته ضرورت دی نو به ئې دخوشحال يا شيدا يا رحمان يا حافظ يا جامي اشعار په

ترنم او ويل او ويل به ئې: دا د روح غذا ده!!

په دغه غزل کښې زموږ مقتدر هنرمند (خوشحال خان) صرف د آرټ او نفاست تخليق کوی ::

ستا وصال لکه دريابدی نه ماهی
په هجران دی هر زمان دي په ماهی
په ژړا مې څنې غوښت د سپينې خولې کې
په خندا ئې وی چې څه کا داسې ؟

وائې څوک ئې چې زما په کوڅه ګرزي؟
په حاضر جواب مې ورکړ ستا مرېيي
هم په خوږ دنګه ناله، هم په تن نال شوم
بېلتانه دا بانډی وکړ کار دی

د خوانۍ بهار څه په ده دی دنيه دنيه
دا بهار که هميشه په دنيا وي
ګل، سنبل، نسرين، نرګس، لاله، غوټۍ
د مقام سره دي دا وړو درست پسرلی

چې ئې د نيسم په څېر کښې راته ګوري
لکه مست د مور په پيو کم کېلي
دا شيرين ياران به نه وينم چې ومرم
خدايه ما په جهان تل لري ژوندي

ډېر صفت د شاپير بو او ويده شي
ولې ستا د مخ څوك نه وينم مخي
او رنګ زيب به د کابل دخلل غم کا
ساقي وخت د نو بهار دی را وړه مي

چې نږه سوی دی دخوشحال په فريادنه شي
په سينه کښې دی سندان دی که زړګی؟

دخوشحال خان په لوی ديوان کښې به تاسې دغسې روحي تفکهات ډېر وموندي او داته ډېره بيتونه داسې دي، چې فقط د آرټ په مجرد او غير انتفاعي اړخ پورې

اړه لري، مګر خان څو يو سياسي حکمدار ؤ، ده خپله هنرمندي او آرټيسټکه لياقت او فني ذوق په داسې چارو کښې هم استعمالاوه، چې هغه د روزمره ژوند سره اړه

لري، او کله دا وسنی ترقي پسند په ټول يو مدقق نقاد څنې جوړيدي، چې د ريا کارانو د ريا او مکر پرده ئې

ځینې له، او په ژبه یې دقوېکې کار کاوه لکه چې
وائي :

زما ژبه نه ده اورده
ګذارونه د ټوپکې کا

انتقاد او کریټکزم خو د نوي ډیلزم او ترقي
پسندۍ روح روان دی، تاسې وګورۍ چې خان ځینې
مذهبي متعصبان او ریا کاران په کومه ژبه رسوا
کوي :

دا تاراج لکه شیخان کاندي په مکر
افریــــدي نه دي داهسې تاراجي
صفائي د زړه په کار ده نه د ږیرې
څو به ږیره ګرزوی شا نه حاجي ؟

دا یې سحر د بنګال د مڅکې راوړ ؟
چې درست ازبښ په ګټ کې وما نه حاجي !
دغه انتقادي تیر ژبه یوازې شیخانو ته نده متوجه

بلکه دخپل عصر ظالم زمامداران هم رسوا کوي، او په
هغه وخت کښې چې خلکو به داورنګ زیب پر دربار
سجدې کولې، او د ګردنکشانو او لویو جهاندارانو

څخو نه هم ده تخت نه ټیټوه، خوشحال خان په کومه
ژبه او په څه ادیبانه استهزا او عارفانه تجاهل دغه
ریا کاري ښیي :

وخت داورنګ زیب دی
دهر چا تسبې په لاس دی
خدای خبر یې دی په زړونو
چې ریا، که په اخلاص دی؟

ترډې لا خوږه دا ده، چې ددې ظالم امپراطور
نور شخصي افعال څنګه رسوا کوي؟

ددې دور شیخان ډېر دي لوړ پر لوړ
اورنګ زیب پادشاه دوا ډوډی انځور
په هغه چاړه قلم ساز کا قرآن کښې
په هغه چاړه ښهرګ پرې کا دوروړ

په رکوع کښې تسبیحات د پلار د مرګ کا
په سجود کښې زوروي خپله مشره خور
دخوشحال ژوند له قومه سره ؤ او دخپل آرټ به

لو یه برخه یې دقوم داصلاح او ویښولو لپاره وقف
کړې وه، د پښتنو بد عادات او عیوب به یې غندل، او دغه

انتقاد یې داسې تیز او موجه او انتقاعي ؤ، چې د بوهانو
په عقیده خوشحال یوازې شاعر نه ؤ، بلکه یو سوشل
سایکولوجسټ هم ؤ، ده لیدل چې پښتانه دخپلې جزوي

ګټې لپاره ځینې ملي هدفونه او قومي او عمومي ګټې
تر پښو لاندې کوي، او هم په دې سبب ددې دخپل ملي
مرکزیت څښتنان نه دي او د پردو داستعمار ځپې یې
ملي ژوند ورانوي. نو دی د پښتنو حال بیانوي :

او بښ له باده سره کوږ نه ودغلي
په اولجه د اوبښ دغاړې د جرس دی
بل ځای دده انتقادي ژبه پښتنو ته ددوی یو بل عیب
داسې ښیي :

پښتانه واړه بد خوي دي
کوږ په کوږ کاندي غورزي
بو چې سر کاندي په پورته
بــــل یې و وهي مغزي

داجتماعي لوی او مخرب او مدهش عیب تر اوسه
هم په موږ پښتنو کښې سته کوم چې خوشحال خان
څو سوه کاله د مخه ځنې ژړل او ویل يې :

په بل غشي بل ټوپکې ویشتلی نه یم
که ویشتلی یم خو بیا پخپل ټوپکې یم
خوشحال خال د ډیلزم په دنیا کښې مظلوم آزادي

یو راز سبوعیت او حیوانیت بولي، او داسې ښکاري،
چې دده آرټ دغریب او بې وزلي په نفع هم استعمال شوی
دی لکه چې وائي :

دا چې خانان دي یا امرا ګان دي
په هند کې ګرزي په هر مکان دي
غوښې هډونه د مظلومانو خوري
زما تر فهم واړه نادان دي

آیا په ترقي پسند ادب کښې به هم تر دغه لوړ زننده
او تند تعبیر د مظلومانو په طرفدارۍ کښې پیدا شي ؟

داؤد خان د فني استعداد او قریحې لنډ بحث چې
د آیډیلیزم او ډیلزم له پلوه وځېړل شو او لنډه نتیجه یې
دا ده چې خوشحال خان یو مقتدر آرټسټ او فنکار دی

چې دده آرټ او فني تخلیق هم آیډیلو جیکې مزایا

(نور په ۸ مخ کې)

# دروژې نیول فرض دي

د روژې میاشت د برکت، تقوی او پرهیز ګارۍ میاشت ده، بو څوک چې عاقل، بالغ مقیم، روغ او مسلمان وي، کوم شرعي عذر ونه لري پر هغه باندې فرض ده چې د روژې په مبارکه میاشت کښې د اسلامي احکامو سره سم روژه ونیسي او نه یوازې ځوله وږی د خوړلو، عیاشۍ او چښلو څخه ځان وساتي بلکه ځان د ټولو بدیو او مفاسدو څخه را وګرځوي.

روژه نیول ډېر اجتماعي، معنوي او اخلاقي ارزښتونه لري که یو څوک د هغې د پېژندنې، فلسفو او حکمتونو څخه خبر شي او ځان په خبر او ګټه پسې وي هغه به هیڅکله د روژې په مبارکه میاشت کښې روژه ونه خوري بلکه په ځینو نورو وختونو کښې به هم په خپل نفس د حاکمیت او کنټرول ساتلو لپاره د نفس د تذکیې، اخلاقو د سمون، جسمي او روحي سلامتیا لپاره روژه ونیسي.

یو کامل مسلمان هیڅکله د دغه خداۍ امر او اسلامي فرضیت څخه غاړه نه غړوي روژه د خپلو ټولو شرایطو او آدابو سره نیسي ونه غواړي چې د اسلامي شریعت احکام مات او ځان د لویې ګناه او معصیت په کنده کې واچوي.

د روژې یو اجتماعي فضیلت او اخلاقي مزیت دا دی چې یو څوک روژه ونیسي پر هغه باندې لوږه، تنده او تکلیف تیر یږي هغه بیا د هغو کسانو د حال څخه خبر یږي چې د فقر، ناداری او غربت له کبله د ژوند زیاتې لحظې په لوږه او تکلیف تیروي نو د داسې کسانو او خوارانو سره ئې ترحم او عاطفه پیدا کیږي ډیر یږي او د مرستې لاس ورکوي.

څوک چې په ټینګ عزم او راسخې عقیدې د روژې تکلیفونه برداشت ومنې او د دغه اسلامي حکم د ژمې په پېښو ورځو او د نورو ورځو په سختو ګرمیو کښې د خپلو ټولو آدابو سره پرځاې کړي داسې څوک بې له شکه د لوی ارادې ستر فضیلت او تقوی خاوند دی، هغوی د ژوند د نورو مشکلاتو په مقابل کښې هم مبارزه کولای شي.

(۷۰ مخ پاته)

## خوشحال خان ...

او پېښیږي لري، چې فقط مجرد آرټ ګڼل کیږي، او په آرټ د آرټ لپاره خدمت دی، اما دي یو ډول بلسته هم دي، چې د آرټ په ذریعه ئې ژوند ته هم خدمت کړی او خپل هنر ته ئې انتفاعي او عملي بڼه هم ورکړې ده. نو ځکه: همیشه به یې نادي وي د بلبلو د چمن ساز کړي ئې خوشحال په ویل باغ بای

نفساني او شهواني غوښتنې پریښودل د اسلامي احکامو پیروي او د اجتماعي اخلاقو ټینګول یو داسې غوره عمل دی چې د روژې نیونکي د هغه مراعات کوي او پر کیږه لارڼه ځي او نه غوا ړي چې په ژوند کښې چا ته زیان او آزار ورسوي او د بل چا د تکلیف سبب شي.

موږ نیک مرغه یو چې د اسلام د سپیڅلي او مترقي دین پیرو او مسلمانان یو، باچا او ملت مو مسلمان او په دغه بهترین دین مشرف دي کوم چه زموږ د راوسنۍ او راتلونکې نیک مرغۍ ضامن او د ټولو عصري او مدني ترقیاتو برخوا دی.

موږ ته په کار ده چه په دغه مبارکه میاشت کې نه یوازې دغه اسلامي فرضیت پر ځای کو بلکه باید هره ورځ پنځه وخته لمونځ د خپلو ارکانو سره سم ادا او د پاک خدای عبادت او د مخلوق خدمت وکړو او ځانونه تل تر تله د ناروا او ناوړو چارو او مفاسدو څخه را وګرځوو.

د روژې په میاشت کې باید هم نو ع ته خیر رسول، د بیوزلو او د هغو سره مادي او اخلاقي همکارۍ ته دوام ورکړو، ځکه هغه ته خیر او خیرات د روژې ثواب ډیر وي او مسلمان د لوېو اسلامي مجاهد پشو او عابدانو په ډله کښې درومي.

له خارجي منابعو څخه :                                    ژباړونکی محمدهاشم (محبوبی)

# د امازون په ځنګلو کښې د بشر

## یوه عجیبه قبیله کشف سوه

### ددې قبیلې نراوښځې لڅ ګرزي په خبرواترونه پوهیږي

کالاپالو ـ ددې قبیلې نوم نراوسه‌ و جغرافیاوي عالم ته نه‌ؤ معلوم خوادس وپېژندل سوه څکه څو جهان ګرځیدونکي دنه وحشتنا که قبیله د امازون په ځنګلو

کښې په یوه رودخانه کښې کشف کړل ددې قبیلې دښځو هلکانو او نارینو شمیر څو له ۱۰٦ تنو ته رسیږی ددې

قبیلې د کشف څخه ډیر لږ وخت تیرسوی دی او معلومه نه ده چې ددې قبیلې نسل څو ذره کاله پخوا ځنګه‌ؤ

چې دا شمیر له هغو څه پاته دی ؟ دوی د خبرو پرځای یو عجیب او غریب آوازونه دخولې څخه راباسي غشي او

لیندې چې اوږدوالی ئې ۲ متروته رسیږی په هغه ماهیان دځپل خوراک دپاره ښکار کوي، پېژني. په غشي

او لیندې کولای شي چې لوی لوی ماهیان دځپل خوراک دپاره ښکار کړی.

ددې قبیلې خلکو د نړۍ د پرمختګ او دوخت او زمان د تیریدو څخه بې خبره دي، دوی د یو او بل د پاره

نوم نه لري. ښځې او نرئې په یو عجیب لفظ یو او بل ته غږ کوي چې دا لفظ د (کافتانی) لفظ ته ورته او عجیبه

دا ده چې هغو ماهیانو ته چې دوی ئې ښکار کوي هم دالقب ورکړی دی. ددې څخه معلومیږی چې دماهی او انسان نوم ددوی په نزد یو دی نو په دی سبب د دوی دا قبیله (کافتانی) یا (کالاپالو) بولو. شپږنفره جهان

ګرځیدونکو دا قبیله کشف کړل او د بې‌سیم په واسطه دپولیسو هغه مرکز ته خبر ورکړ چې د کالاپالو د قبیلې

څخه ۵٦ کیلومتره لیری ؤ د برازیل دولت پیله څنیوه دنژاد پېژندونکو یوه ډله د څو تنو ساتنوالانو سره دي

سیمی ته واستول څو ددې نژاد احوال معلوم کړی.

یوه کاناډائی یوه ویلی دی چې دوی سودبوستی دی هغه عکسونه چې ددې قبیلې څخه اخستل شوي د نژاد

پېژندونکو له نظره دا مسئله تائیدوی.

(اریکسون هال) کاناډائی یوه دځو نفرو سره په دې قبیله کښې دوې هفتې تیرې کړی او هغه عجایبات چې لیدلی

ئې دی دلایف دنامتو مجلې خبریال ته داسې بیانوی:

د پیری ډکې ورځې مې د کافتانی د خلکو په منځ کښې تیرې کړی نه پوهیږم چې څنګه هغه بیان کړم.

ددې قبیلې خلک دښځې څخه نیولې ترنرپورې په ځپل واړه ښکار کوي او مساوي ئې ویشي.

دوی د موسیقۍ یوه آله هم لري. دا د موسیقۍ آله یوه لوتولکه ده چې د هغه څخه عجیب او غریب آوازونه

پورته کیږی. په هغه ودانی کښې چې د ګنبدې شکل لري او د ډولونه لوبه ده دا ډولیږی ددې تولکی آواز د پیری نه ډک دی. دا تولکه په عمودي ډول په خوله کی نیسي څکه ددې تولکی اوږدوالی د دوی تر پښو پورې

رسیږی او دوی نه شي کولای چې هغه په افقي ډول ونیسي.

ز ما او ملګری ددې تماشا څخه حیران پاتې ؤ او زما ملګري ډیر بیر پدل. دا هم باید ووایو چې ددې سیمې خلکو په حقیقت کښې ددې ورځې کار نه کاوه. ددې قبیلې د خلکو ژوند تر دې اندازې پورې ابتدائي ؤ چې ځنې

حیوانات او ځناوران دوی ته نژدې راتلل، نه ئې ښکار ول څکه چې د حیواناتو ښکار ئې نه پېژانده. اصلا ددې لباس او کالی نه اغوستل ښځې او نرئې لڅ ګرځیدل او فقط لږ واښه ئې پر ملا پیچل چې هیڅ نه پوهیدم دا کار د څه دپاره کوي.

معلومیده چې د کالاپالو د قبیلې خلک په هندسي شکلو کښې پوهیږی دا یره پېژني څکه د دی کورونه دایري په شکل ودان سوي وه. نظافت فوق العاده د دوی په برخه دې څکه سهار وختې تراو ښځه پورته کیږی

هغه ژوندي دو دښاخانه چې دوی ته پرته
ده ورځې او خپل ځانونه ته پرښه
مینځې ·

دوی د چغال په شان د بوه ځای
څخه بل ځای ته نارې وهي ·

ډاکټر هال اضافه کوي: موږ
په دې موده کښې چې هلته ژو هیڅ
بیره اې زموږ څخه نه کړل او هیڅ
کوم عکس العمل د دوی څخه
نه دی ښکاره سوی · دا چې دشې
څخه نه بیریدل زموږ د تعجب وړ
ده ·

دښځې بوځای کیده ډېر سره
په دوی کښې به واروه دمینې په
حال کښې وفا داري ددوی په
مابین کښې موجوده ده یعنې ښځې
او نر ته چې به دشپې واري وارسیدي
هیڅکله اې بو د بلـه خیانت
نه سره کاوه ·

ددې قبیلې دخلکو غذا به
لوړې درجه کښې ماهیان ني
او وروسته د ماهیانو نه دښو
نشایسته ددوی خوراک ډی چې
دا او په دسیپنو ، نرمو او خوندورو
دیښو درلودونکي دي چې کافتا نیان
هغه وچوي او اوړه کوي اې او
حتی خمیر کوي اې هم ، ولي نسي
کولای چې ډوډۍ ځني پخه کړي
وروسته تر هغه اې دخاورو په
کاسو کې ایشوي او اوبه وراچوي
چې دبوه عادي انسان دپاره ډېر
خطرناکه دي ولی کافتا نیان
هغه په خوراخوند سره خوري ·

«استان وایمن» دلایف د
دمجلې خبریال دهغو نفرو دخولی نه
وایي چې دا دیکسون هال سره
ملګري وه چې د کالاپالو دقبیلې خلک
په تیرې سود او پخوانی حالاتو ځان
نه خبروي جنګ او جدل ، اختلاف ، غلا
دپخوانه وجود نه پکښې لري دوی دغلا
دمفهوم سره نا آشنا دي او غلا نه پیژني
چې څه شي ده او هر ورځ هغه شیان چه
دوی درلوده ، ور کیدل مګر دوی
نه بوهیدل چې دا شیان چا اخستي دي
او هیڅ باک اې نه کاوه «وایمن»
زیاتوي چې د کالاپالو سیمه ډېره ښکلې او
سرسبزه ده ځکه چې تر اوسه هیڅ کوم
مذهبي ، تجارتي ، اکتشافي ، نظامي او د
معدن پیژندونکو کوم هیئت ودې ځای
ته ژوندي نه دي تیر سوي ·

ددې منطقې شاوخوا ۵۰۰ کیلو متره
بیخي خالي ده او هیڅوک تر اوسه
۱۰۰ کیلو متره ودې ځای ته ژوندي نه دي
تیري سوي ·

د کالاپالو قبیله دمیوې او دښو
نه ډکه ده او پهرودو او اوبو کښې اې
ماهیان ډېر دي که څوک ډېر وخت
په دې قبیله کښې پاته سي هیڅ لوږه او
خطر به حس نه کړي او دهوسایي ژوند
به وکړي ·

ددې قبیلې خلک بوډول ښا لري
او غیږې پاسي او ښځې هم دغیږې سره علاقه
لري او دناربنو سره غیږ پاسي دوی
بوازې د باد ، طوفان او زلزې څخه
بیریږي هغه بیان چې دوی په خدایي نیولي
دي دا تو پښو درلودونکي دي چې کافتا نیان
په هفته کښې دوې شپې ددې رب النوع
و پښو ته خپلې تولګي وهي ، ښاوي
کوي او ښکار سوي دریابي حیوانات
دهغو پښو ته اچوي ، هغه پلټنې چې
پوهانو کړي دي داسې وایي چې ددې
قبیلې خلک ډېر اېن عمر لري چې په ډېر
زحمت تر ۴۰ کالو زیات عمر
کولای سي په دې سبب رئیس دقبیلې
او سپین ږیري سړي نه لري او
زوړ سړی هغه دی چې عمر اې ۵۰
کالو ته ورسیږي د دې علت
ددوی بیکاري ، تنبلي او زیاته
آرامي ده ښځې او نر اې په هفته
کې ددې ورځې کار نه کوي · په دې
ورځو کښې ښکار نه کوي ، خپله
غذا نه برابروي او قوله ورځ
لمر ته پراته وي او دلمر حمام
کوي ځرنګه چې داماذون په
زیاتو ځنګلو کښې دملاریا او
جزام ناروغي زیاته لیدل کیږي
مګر په دې سیمه کښې ددې
ناروغیو څخه بوه هم نه لیدل
کیږي ·

«وایمن» کاږي هغه عکس
چې (ډاکټر هال) ددوی د تولګو
دخوني څخه اخستي دي ښکاره کوي
چې کټ مټ د کنسرتو وسالون ته
ته ورته دي او په تیره بیا دامریکا
بلوډي غرفې ته چې دمونتر ال
جهاني نندارتون دي زیات ورته
دي د کافتا نیانو کوچنیان تر ۸
یا ۹ میاشتو دمور شیدې خوري او
شیدې د شپې له خوا ور کوي
نه دورځې · هغه وخت چې کوچني
وزیږیدي دقبیلې دخلکو څخه به
واردې کوچني ځادره کې ·
داهم باید ووایو سربیره
پر ماهي او دښو بل ډول چټله غذا
هم خوري کله چې میږ ، ملخ او یا
کوم ځنګلي حشره ونیسي وزروته
اې ځني پرې کوي او خوري اې ·

نور په ۳۶ مخ کې

ورته حاصلیږي د هغه ستر ارزښت له مخه به د مشکلاتو با وجود د هیڅ ډول کوښښ څخه ډډه ونه کړي.

تاسو به خبر یاست چې (گوستاو فلوبر) د مادام بواري کیسه دوهم ځل ولیکله او دوهم ځل اې هغه لیکنه وسوځله او دریم ځل اې هم د هغه د لیکلو تکلیف پر خپل ځان ومانه او په نتیجه کې اې دغې لیکنې ډېر ستر ادبي ارزښت پیدا کړ.

(شارل استمیز) تل هر کله چې نور همکاران اې د کار څخه فارغه او کورونو ته ولاړه شي څو ساعته نور هم کار کوي، یوه ورځ چا پوښتنه ځني وکړه چې ولې دومره زیات کار کوي حال دا چې زیاته اجوره نه اخلې؛ هغه په جواب کې ورته وویل: زه ددې دپاره کار نه کوم چې ډېره حق الزحمه واخلم بلکه د کار کولو سره ډېره مینه لرم او تل په خپل شوق ډېر کار کوم.

## ساده کارونه د مهم کارونو په څېر سرته ورسوئ

ځینې کسان پدې فکر کښې دي چې د هغو کار او شغل د اهمیت وړ ندي او دا از کسان تل ځانونه د مهمو کارونو د سرته رسولو دپاره چمتو کوي حال دا چې موفقیت ته هم نه رسیږي.

دغه کسان باید و پوهیږي چې مهم کارونه د جزاې کارونو څخه جوړ شوي دي، ځینې کوچني او ساده کارونه ښائي سړي ته زیاته گټه ونه رسوي خو که د (امرسون) د وینا له مخه که په چټکۍ اجرآ سي کیدای سي د لویو او د ویاړني وړ کارونو موجب وگرځي.

که کوم بزگر په خپله کروندې کښې د کرنې د مهارت له مخه ډېر زیار و باسي زیات حاصلات اخلي او هم کولای شي چې د ځارویو د روزنې د لارې هم ډېره گټه وکړي.

که کوم نجار په کار و کړي او کار تر سر تېر نه کړي د هغه میز، چوکۍ او نور شیانو ته هر څوک جلبیږي او په نتیجه کې زیات مشتریان پیدا کوي او د خپل کار او زحمت ایستلو څخه ډېره گټه، خوښي او خوشبختي په لاس ورځي او نور خلک اې هم د کار څخه رضایت حاصلوي.

د هر چا د کار شکل او فورم تر بل هر عامل زیات د هغه د شخصیت نماینده دی، د اوولسم عصر یوه نامتو لیکوال ویلي دي چې فورم او شکل د یو چا د بڼې په څېر دی چې د هغه په واسطه پېژندل کیږي.

هر څوک چې زموږ کار تازه او فورم اې نوی وي خلک اې زیات خوښوي او د کار او کسب خاوند د خپل کار او لیاقت له کبله ښه معرفي کیږي، نو کوښښ وکړي چې خپل شخصیت بهتر او په هر چا و پېژني په دې ډول هر څوک کولای شي چې خپل ژوند په ښه ډول تنظیم او برابر کړي څو چې د خپل ژوند او کار څخه هم په خپله خوښ او نتیجه واخلي او هم د نورو کسانو د خوښۍ او گټې سبب وگرځي. (پای)

## د نورو افکار

هغه څوک چې پر نورو باندې اعتماد ونه لري تاسو هم باور ورباندې مه کوئ.

(شکسپیر)

د زړښت او سپین ږیر توب شپې لپاره ښائي چې د ځواني په ورځ کښې ډېوه پیدا کړو.

(افلاطون)

څوک چې بې له سوچ او تفکر څخه خبرې کوي د هغه ښکاري مثال لري لکه چې بې له نښې غشي ولي.

(منتسکیو)

نیکمرغه هغه څوک دی چې په سختیو او بدو ورځو کښې خپل ځان ونه بایلي.

(پاسکال)

## گټوري خبرې

تاسو کولای شئ چې په زیار او زحمت خپل ژوند ښه او برومنداته کړئ.

✿✿✿

هغه خلک چې د خپل ځان لپاره نه بلکه د نورو د خدمت خوشحالي او سعادت لپاره ژوند کوي، هغوی تل ژوندي دي.

✿✿✿

په منظم ډول د زړه په صدق پرله پسې زیار او زحمت تاسو د سرلوړۍ د بې اوخواته بیائي

اتحاد، اتفاق او یووالی د ډېرو مسئلو طبیعي غذی دي.

د ریډرز ډایجسټ څخه:

دغ، ایوبزی ژباړه:

# تل خوشبینه او خوښ اوسئ!

د یوه نامتو موسیقي دان خپل یو شاګرد ته یو پند ورایه چې هغه ته پاملرنه د بریالیتوب او نیک مرغۍ راز په بر کښې لري

او دا د سبب ګرځي چې یو څوک د خپل ځان د پیژندنې او د خپل کار څخه د بوره رضایت نه ګټه واخلي.

هغه یوه ورځ یوې ځوانې نجلۍ ته د پیانو درس ورکاوه او له هغې څخه یې وغوښتل چې یو نوټ څو ځله په پیانو کې تکرار

کړي نجلۍ هم هغسې وکړه، وروسته استاد په خپله د هغه نوټ له مخه پیانو وډغول خو د هغه نغمه ډېره په زړه پورې وه او ځوانه

نجلۍ ورته حیرانه شوه او د موسیقي دان څخه یې وپوښتل چې ما پیانو د نوټ له مخه وډغول او څو ځله مې تکرار کړه خو نغمه دومره

دلچسپه نه وه لکه څرنګه چې ستا له خوا پیانو وهل کیږي: استاد په جواب کښې ورته وویل: علت یې دادی چې ما نغمه لکه

څرنګه چې زړه مې غوښتی هغسې مې په پیانو کښې وډغوله او تا د لیکل شوی یادښت له مخه نغمه تکرار کړه.

ځوانې نجلۍ بیا کوښښ وکړ او دا ځل یې لکه څرنګه چې زړه یې غوښت په پیانو کښې یې هغسې نغمه وډغوله او دا ځل د خپل کار

څخه خوښ او راضي وه.

زموږ هر یو په هر کار او کسب چې اخته یو باید په هغه کار کښې کوښښ

وکړو او لکه څرنګه چې زړه مو غواړي کار هغسې پرمخ بوزو څو چې نتیجه یې موږ او نورو ته په زړه پورې وي،

البته دا ډول کار کول زیات پاملرنه او تلاښ غواړي خو که هغه خوښي او ډاډ چې د دا راز کار کولو څخه لاس ته

راځي په نظر کښې و نیول شي نتیجه یې ډېره ښه ده او انسان د داسې کار د پرمخبیولو څخه ویاړ کوي.

یو تکړه نقاش چې د خپل کوښښ او زحمت ایستلو په نتیجه کښې یوه ښکلې تابلو جوړه کړي خپل ځان په

هغه کښې وینې او خپل لیاقت پکښې احساسوي.

موږ غواړو په دغه مقاله کښې څو ټکي یادې کړو او که موږ د هغو رعایت وکړو د کار او زحمت ایستلو نتیجه موږ ته ترا په زړه پورې کیږي.

کوم کار چې تاسو ته سپارل شوی وي د خپل وس په اندازه د هغه کار او وظیفې په ښه سرته رسولو کښې کوښښ وکړئ.

یو امریکائي یو وایي: هغه څوک قهرمان نه دی چې تر بل چا یو کار په پرمخبیولای شي بلکه هغه څوک دی چې د خپل وروستي طاقت په اندازه د قهرمانۍ د ګټلو د پاره تلاښ کوي.

ډېر ځله دا کامۍ بېره موږ دې ته نه پرېږدي چې په خپل مطلب کښې کامیاب

شو او کله کله د خپلې ناکامۍ د پاره بانې کوو او مثلاً وایو: ما او قعاً د دغه کار د کولو په لار کښې تلاښ و نه کړ، دې کار ارزښت

نه درلود چې په هغه کښې مې کوشش کړی وای.

که په کوم کار کښې په کوشش سر ته ورسېږ موفق نه سو لاس ته مایوسه کېږی یو ځل بیا زحمت و کاږی او د بریالیتوب تر وخته پورې د کوشش څخه لاس مه اخلی.

پروفیسر (یوجین اهرلیخ) په خپل دغه کتاب کښې چې (شپږ ول زده کړه و کړو) هر کله چې د

سلهاو تنو زده کوونکو سره چې لوړ، متوسطي او لږ نمرې یې وړې وې مرکه و کړه ورته څرګنده شوه چې هغو ټولو د

فطري استعداد له مخه هیڅ توپیر نه سره درلود بلکه د ښو نمرو وړونکي زده کوونکي تر هغو نورو زیات درس وایه په زړه کړه کښې یې تر ها بل ډېر زیات راپستی.

کله کله انسان ته دا مشکل معلومیږي چې په یو کار کښې بریالی شوی نه وي یو ځل یا څو ځله بیا په هغه کښې کوشش وکړي

خو که یو څوک په هغه خوښي او لذت خبر سي چې په کوم مهم مطلب او کار کښې د دوهم ځل او بیا بیا کوشش کولو په نتیجه کښې

# دقرآن عظیم الشان کالیزه

قرآن عظیم الشان دپاک خدای (ج) وروستی آسمانی کتاب او الهی پیغام دی چې د بشر دلارښوونې دپاره څوارلس سوه

کاله دمخه دجهان حقیقي واکدار او خالق خپل مخلص بنده او اولوالعزم پیغمبر حضرت محمد مصطفی (ص) ته دروژې دمبارکې

میاشتې په ۲۷ نیټه رالیږلی او مسلمانان دهغه په رڼا او پلوشو کې ددنیا او آخرت خیر او نیکمرغي حاصلوي او دهمدغه خدایي مشعل

او عرفاني ډیوې په هدایت او برکت مسلمانانو په تیرو دورو کې ځلاندمدنیتونه تشکیل کړي او اوس هم د هغه ستر تعلیمات

او بهترین قوانین د مسلمانانو د دنیوي او اخروي فلاح او خوشبختۍ وسیله ده.

قرآن کریم نه یوازې مسلمانان دشرک، کفر، الحاد، دهریت، ګمراهۍ او ستر فساد څخه راګرځولي او دیوه واحد او

لاشریک خدای پرستش ته را بللي او دنورو (مؤمن به) شیانو په اعتقادې مامور کړي دي بلکه دد نیائي نیکمرغۍ او ستر

ژوندلارې چارې ئې هم ورښودلي دي.

مسلمانان کولای شي ددغه آسماني کتاب او الهي قانون په پیروۍ او دهغه دعالي تعلیماتو په رڼا کښې دعصري ژوند او

ټولو اوسنیو پرمختګونو څخه پوره ګټه او برخه واخلي داځکه اسلام په خپل څوکاټ کښې دانسانانو داوسنیو

او راتلونکو پرمختګونو، مادي او معنوي تحولاتو پرخوا دی.

داسلام ددغه ستر کتاب لوړ تعلیمونه او ګټور ارشادات نه یوازې معنوي، اخلاقي او ستري تربیوي جنبې لري بلکه دبدوي عربو او د ټولو انسانانو پرمخ

ئې دعلومو او فنونو دروازه خلاصه کړه او کومو انسانانو او قومونو چې داسلام لوړ مشعل دلارې مل ګرځولی ددنیا او آخرت دتاریکیو څخه ژغورل

شوي او هیڅکله د ذلت او ګمراهۍ په کنده کښې نه لویږي او تل تر تله په دنیوي او دیني چارو کښې بری حاصلوي.

داچې داسلام د حقیقت نه ځینې ناخبره او دهري مسلکه کسان بیدیني او لاقیدي تنویر او دعصر مثبت خیالات ګڼي دهغو دغه بې ځایه او غلطه ادعا

موږ په ټینګه ردوو او دغه حقیقت څرګندوو چې اسلام دپرمختګ او تنویر دین دی او انسانان دغه سپیڅلي او منور دین ته هر وخت ضرورت لري او د

همدغې لارې څخه او دهغه دګټورو اساساتو دعملي کولو دلارې انسانان دژوند په ټولو برخو کښې پرمختګ کولای شي.

موږ چې دخدای [ج] په فضل او مهربانۍ داسلام په سپیڅلي او مترقي دین مشرف یو، باچا او خلک مو مسلمانان دي او داسلام عالي شریعت موږ په هیواد کښې چلیږي، اساسي قانون مو ددغه الهي

آیین داساساتو په سیوري کښې ترتیب شوی او موږ اوس هم د مادي او معنوي انکشافاتو پرخوا په

ګامونه اخلو او غواړو چې دژوند په ټولو برخو کې مو ستر پرمختګ په برخه شي او دیوه حقیقي مسلمان

ولس په حیث په نړۍ کښې نیک مرغه او برومند ژوند وکړو.

موږ اراده کړې ده چې د اسلامي نیکو اودښتونو سره سم د دیموکراسۍ، اجتماعي عدالت او اسلامي برابرۍ او مساوات

څخه برخه واخلو، هیواد مو د بیکارۍ، ناروغۍ، رنځ، ناپوهۍ اخلاقي مفاسدو او داډول نورو اجتماعي نیمګړتیاو څخه خلاصون

ومومي او موږ د اوسني عصري او مدني ژوند څخه پوره ګټه واخلو.

الهي دغه ستر او مقدس کتاب او عالیشا نه پیغمبر [ص] په رڼا او برکت زموږ دهیواد

څخه دو چکالۍ مصیبت لیرې کړی او موږ ټول داوسني وخت دټولو فتنو او فسادونو څخه وساتي

خلک مو داسلام دپیروۍ په رڼا کښې پرمختګ او مدني ژوند ته

ورسیږو په لار کښې موفق وګرځوي. ایوبي

# ولولې گلونه

مرتب او تهیه کوونکی ایوبزی

حنان بارکزی: پخوانی ادب:

## د ښکلو د وفا تمه

چې ئې وکاته ستا مخ ته له حیرته
دلاله په زړه کښې داغ شو له غیرته
چې نرگس د ستا له سترگو هم چشمي کړه
ولې هسې شو محروم له بصیرته
چه ئې ستا له خولې خندا ملاحظه کړه
پسته واړه خوله نیولې له حیرته
بوی چه لاړې ستا د زلفو د بوی وکړي
لاس ئې څکه وخاته له خپل صورته
داد کوم ښکلي د مخ ته بیتابي کا
چه گلاب گریوان کړ څیرې له حسرته
مشرق ستا په دیدن شو په گلشن کښې
غونچې واچاوه پوړنۍ له عشرته
د وفا تمه له ښکلو نا روا ده
ما حنان دی آزمویلي څو کرته

د پښتو مخصوص ادب:

## لنډۍ

سپوږمۍ سلام به درته وکړم
جانان مې مه د سوا کوه ماله راځینه
سپوږمۍ د خدای روی مې دروړی
د دوو مینو ترمنځ مه وړه مشعلونه
زما به تــه یادیږې بــاده
که د جنت په منارو ولاړه یمه
تــر تا دې غــم لا وفــادار دی
ته گله کله غم دې تل راسره وینه

عبدالهادی ریشاد:

## موډ پرستو ځوانانو ته!

شرم نه دی چې پوستین له پلو غواړو
یا خپل مړی هم د بل کفن کې نغاړو
پیلامې زړه د نورو مو اغوستي
گام گام څو به چکه غاړه او په ویاړو

نوی موډ او بد تقلید خو دا ژر زده کو
پر کمال مو نو ملامتــه ده د واړو
له بومې اوله کماله دماغ تش دی
په جیبو کښې مو عکسونه د لوبغاړو

هغه وخت به وطندوست هیواد پرست شو
چې د بل مال ونه وایو پسې نارو
چې نه علم نه کمال او نه هنر ستــه
های پښتونه! په دا یو عالم و بچاړو

په خالي جیب به تر څو د بل پیښې کړو
داسې کښینو بر دا خپل احوال وژاړو
آینده نسل هم کار له موږه غواړي
اوس فرصت دی کنه څو به بندو غاړو

## ژوند څه شی دی؟

هغه ویښتوب دی چې یوازې یو کړۍ دی او بیرته پر سړی خوب راشي.

هغه لنډه فاصله ده چې زیږیدنه او مړینه سره جلا کوي.

هغه جامه ده چې یوه لحظه ئې جاودانی روح په سعادت اغوندي.
هغه توره دی چې د تقدیر منشي ئې په بې اعتنائي سره لیکي.
هغه پوښتنه ده چې جواب نه لري.
هغه اندېښنه ده چې شروع شوي نه دي بیا سرته رسیږي.
هغه معما ده چې هیچا حل کړې نه ده.

هغه بحری دی چې د شپې په تیاره کې ځلیدلی او ورکیږي.
هغه برېښنا ده چې د تیارې له منځه راوزي او د تیارې په لمن کې پټیږي.

هغه ناچیزه بانگه ده چې د زمانې گردش بشرته په امانت سپارلي او بیا ئې بیرته څخني اخلي.

گل پاچا الفت:

# د غاړې لونګین

چا چې ایښې داشین خال ستا پر جبین دی
زما زړه هم د دغه له لاسه شین دی
ستا امیل کښې کې سل زړونه دي پیلی
چا جوړ کړی ستا د غاړې لونګین دی
چې زه شوی یې دلبر له پلو شرنه
ستا د عشق په حرارت می دا یقین دی

سوده سالو دی سره لمبه ده نه پوهیږم
که زما د زړه په سرو وینو رنګین دی
د جمال پر شتې ته چې جوړه دلی
ورلیږه لی چا سلام چا آفرین دی

معجزه ته د قدرت او د خلقت یې
آرشتیا چې خدای احسن الخالقین دی
خدای دې ستا ته په امان له بدو ستر ګو
دا دعا د پر شتو زموږ آمین دی

---

عبدالاحد سپین مل: د لښکر ګاه:

## د مینې تلاش

که هر څو سترګی زماوی کرغیړنی
د کتلو وړ دی نه دی د پوهنی
صبر نشته اجازه کړی د کتلو
او که سترګی کړم په مچکه لکه مړینی
که د مخ اندازه نه وی مې مې بوله
څه په کار چې په یاد بیړم دی به مړینی
هیڅ پوه نه یمه چې څه به وو ایمه
تور دی زلفی ابریشم وی که وړینی
دوړه مه پری باد ی خدایه به دا سترګو
بیلتانه ته ایری ښی دی د وړنی
لیل شوی لا دوخته ستا په تور یم
زما خوښیږی ستا د تور ګوله لیړی
که شړې مې نو پالل دو عدی پوښ دی
که پوښ نه وی نودی زده کړ لی شړنی
د سپین مل د ژوند او ستری سکلی به دا وی
کړه خبری خدای لباره د خوړنی

# نثر و ادب



د پوشګین اثر:

## د هوسونو
### مرګ

زما هوسونه مړه شوه خو زه لا ژوندی یم.

ما خپل زړه له خوږو او خوندورو

د ویاړ څخه وشکاوه او مړ نه شوم، اوس ماته بی له درنځ تیر ولو او غم څوږ لونه نور څه نه دی پاته.

زما غلی او چپ زړه د همیشه لپاره د امید له تو دوالی محروم دي

زما د سرنوشت طوفانو نو زما د ژوند

تر او تازه ګل مړاوی کړ، اوس زه یواځی له نا امیدی او فسر دګی سره مخامخ یم او د نجات و دوستی کړی ته ګورم.

زه هغه وچه پاڼه یم چې منی او خزان یې لیدلی مګر دالا په لغړ ښاخ پاته ده او د ساړه ژمی پادونه یې ربړدوی.

د خارجي مطبوعاتو څخه:

ژباړونکی (طالب):

# موريس مترلينګ

دی يو ډېر لوی عالم او په ژوندانه کښې يې د طبيعت د پټو رازونو د څرګندولو دپاره هڅه وکړه او په ډېر غور يې د مړيانو او وايينو د ژوند په باب د اسرارو څخه پرده پورته کړه - مترلينګ د خوب او خيال په باره کې هم زياتې مطالعې لري.

بې شکه تاسې هم د بلجيکې لوی فيلسوف او درام ليکونکي «موريس مترلينګ» د نامه سره آشنايي لرئ دی د نولسمې او شلمې پېړۍ کښې د جوړونکي ليکوال دی. د ده فلسفي افکار د دې حقيقت ښکارندوی دی چې

په پراخه پيمانه يې ژوند او د هغه ثبات پېچومې پېوندلی دی او حقايقو ته د رسېدو په لار کښې له هڅې او مجاهدې څخه نه دی لويدلی.

مترلينګ په ۱۹۱۳ کال کښې د نوبل په ادبي جايزه بريالی سو، د هغه آثارو په وړاندې کولو لکه عقل او سرنوشت، د مسلو د مچيو ژوند، د وايښو ژوند، د ميږيانو ژوند او لوی راز، ډېر شهرت تر لاسه کړ. د دې لوی

فيلسوف عقايدو په هر ځای کښې بې شميره طرفداران ځان ته کش کړي دي. څرنګه چې د ده ليکنې ډېرې ژورې دي نو کولای سي چې ځيني پټ رازونه څرګند کړي او انسان و باطني جهان ته ور کش کړي. ده د خوب

او خيال په باب زياتي مطالعې او څېړنې کړي دي. او د ده د پلټنو نتايج کولای سي چې څېړونکو او حقيقت پېژندونکو ته الهام ورکړي. د «ناشناسه کوربه» په کتاب کښې د خپلو پلټنو نتيجه د خوب په باب داسې راوړي:

يو سړی يوه شپه ميلمستيا ته ورځي کسانو څخه يو نفر وګماره چې هره شپه څو واره تا بېره دي له خوبه ويښ کړي او ددې آزموينې څخه يې مراد دا و چې

آيا انسان تل خوب ويني. که خوب ليدل استثنايي دي؟

وروسته له هغه چې د غه سړي د خپلې ښځې په واسطه د شپې څو واره پر له پسې شپږ مياشتې د خوبه ويښ سو

و دې نتيجې ته ورسيدی چې دا نا ممکنه ده چې سړی دې بيده سي او خوب دې و نه ويني. که موږ له خوبه ويښ سو او دا احساس کړو چې تيره شپه مو خوب نه دی ليدلی

دا له دې امله دی چې زموږ حافظې نسواې کړای چې هغه خوب ثبت کړي، که نه انسان چې بيده سي، سمدستي که ستړی وي که نه وي، خوب ويني او څرنګه چې په خوب کښې په زمان او مکان کښې شامل نه دی نو ښايي يو فکر چې لس کاله موده په بر کښې نيسي، په يوه دقيقه

يا ثانيه کښې و ويني. په خپله مترلينګ وايي:

يوه شپه ډېر نا وخته بيده سوم او خپلې ښځې ته مې و ويل چې وروسته له پنځو دقيقو مې ويښ کړه. وروسته له پنځو دقيقو چې هغې ويښ کړم ومې ليدل چې د بلاد ميلمستيا و

څخه مې يو لويه ميلمستيا چې جوړه کړي يې وه، د خيال په نړۍ کښې ابدالي ده.

مترلينګ شل کاله خپل خوبونه يادداشت کړه او دې نتيجې ته ورسيدی چې ټولې پېښې او پديدې چې په نړۍ کښې موږ بايد ورسره مخامخ سو، بې له دې چې د لويوالي او کوچنيوالي له پلوه د هغو په منځ کښې

امتياز کي دي، په خوب کښې زموږ تر سترګو کېږي.

يعنې د خوب او خيال په نړۍ کښې په لسو تيرو يا راتلونکو کلو کښې د يوې پيالې چای وچښل د يو ډېر

ګران دوست له مرګ سره يو شي دي. او د خيال نړۍ د دې دوو څخه هيڅ يو ته کم ارزښت نه ور کوي. خو که يو څوک د يوې اوږدې مودې لپاره هره شپه او هره ورځ په داسې وخت کښې چې بيدېږي، پر له پسې وروسته تر ويښيدو او د مخه تر دې چې د و ځې ياد څراغ روښانه يي

د هغه د خوب نښې له منځه یوسي، هغه مناظر ثبت کړي، په قطعي توګه ټوله هغه پېښې چې وروسته به ورته پېښې سي، [په هغو یادښتو کښې به ئې ځای ورکړی چې ثبت کړی به ئې دي.

د هغو سرګذشتونو څخه چې مستر لینګ خپاره کړي دي یوه برخه ئې په یو هالنډي حیوان پېژندونکي پروفیسر پورې اړه لري.

مستر لینګ د دغه عالم سره کله کله لیدني کتنې کړې دي او د هغه کارونه یې په یوه خاص کوچني دفتر کښې ثبت کړي دي.

مستر لینګ په خپله وايي: یوه ورځ د سهار تر نهارې وروسته مې ولیدل چې پروفیسر په زخم تړلو اخته دی، ځکه چې یوه د بېزو ګیانو څخه ئې د خپل ملګري سره جنګ کړی و او یو غوږ ئې ټپي سوی و. پروفیسر په داسې حال کې چې د بېزو غوږ یې پانسمان کاوه ویې ویل: غوږ، د طبیعت د لوبو نمتو څخه دی، او که د انسان یا حیوان د غوږ په شکله په غور د څېړنې او مطالعې وشي زیات معلومات به د انسان په برخه شي. ده د دغه دنګه وویل: زه تا ته وا: درکوم چې که چېرې دې د غوږ پکه نه وای، ګرسره به دې هوښ او ذکاوت نه درلودای یا به دې هوښ ډېر لږ وای. ما په جواب کښې ورته وویل: تر اوسه مې نه دي اورېدلي چې د غوږ د پکي لویوالی و کوچنیوالی دې د انسان پر ذکاوت اغېزه ولري.

پروفیسر جواب را کړ: د غوږ د پکي د لویوالي او کوچنیوالي تاثیر په دغه کښې دی چې هر څونه چې د غوږ پکه لوی وي د هغو پر وسعت او د هوښ پر قدرت دلالت کوي. د دغې یا ته کړه: که ئې یوه ورځ دارویا په یوه پوهنتون کښې د دوحیاتو لوست ما ته په غاړه را کړی وای، د دغه حقیقت به مې و محصلینو ته ور زده کړی وای او هغو ته به مې ویلي وای چې غوږونه را ښکاره کړي چې زه دوایم تاسې د څه ډول ذکاوت درلودونکي یاست؟.

کله چې پروفیسر په خبرو اخته و د بېزو غوږ یې په ځیر څارنې لی، بېزو په آرامۍ لاس د پانسمان پر ډېشکي کېښود او مخ یې پروفیسر ته وګرځاوه ګواکې د حال په ژبه ئې غوښتل پوښتنه وکړي چې تر څه وخته پورې به دغه ډېشکیانې د هغې پر سر پېچلې وي؟

پروفیسر و بېزو ته ونهول چې تر یوې هفتې وروسته به ټپونه جوړ شي بېزو آرامه د میز څخه کښته سوه او د خپل قفس خوا ته ولاړه.

پروفیسر وویل: آیا فکر دې کړی دی چې طبیعت ولې د غوږ پکه داسې جوړه کړې ده؟ ورته مې وویل: د دې لپاره چې د ږغ څپې په هغه کښې راټولې شي او وروسته د اورېدو اعصابو ته ورسېږي. پروفیسر وویل که د طبیعت غایه دغه وای چې غوږ دې د ږغ څپې راغونډې کړي، هغه به ئې د آس د غوږ په شان جوړ کړی وای؟ نور ته و مې ویل چې ستاسې په عقیده ئې ولې د غوږ پکه د ډول جوړه کړې ده؟.

ددې لپاره، چې وکولای شي لویوالی او کوچنیوالی شدت او ضعف او زېر و بم د آوازو چه نموږ د غوږ لي څخه راورسي د فهموي. پروفیسر وویل: څو کاله د مخه یوه پرتګالي پدې ښار و خوا کښې ژوند کاوه، هغه یو تند خویه سړی و او په کوچنۍ پلمه یې چاقو را کښېو او پر خلکو یې حمله کول. هغه وخت چې دی دې ملک ته راغی یوه ایکی (پیسه) ئې نه درلوده، خو د زماني په تېرېدو ډېرې پیسې او د ځان لپاره ئې یو ژوبڼ (باغ وحش) جوړ کی.

مایو مجوړه بېزو ګیاني په هغه باندې خرڅې کړې. د غه بېزو ګیاني لکه دوه مېنان پو د بله ئې په غېږ کښې سره نیول، څو هر کله چې به د ژو خاوند یعني هغه تند خویه سړی و قفس ته ورنږدې کېده، دوی به ډېر په ډول وروسته له څه مودې ماده بېزو بچی راوړ.

خو د بېزو بچي هم د ژو له خاوند څخه ډېرېدي او خپل ځان به ئې کله کله پټاوه. د ژو خاوند هم داده کړې او د لور د څښتن شو.

دده لور چې دوه کلنه شوه، یوه ورځ ده وغوښتل چې د بېزو بچي د قفس څخه راوباسي څو نجلۍ په هغه بازۍ وکړي.

بېزو ګیانو په چټو بڼو د دې کار مخنیوی وکی. د ژو خاوند چې د حال ولیدی یو سوټی یې واخستی او قفس ته ورننووت. بېزو ګیانو حمله باندې وکړه، خو څرنګه چې د ده په ټینګ سوټي پلاس کښېوتو بېزو ګیاني یې ووهلې او د بېزو بچي ئې د باندې را ویستی

او په ورځو ورځو یې هغه مجبوروله کاوه چې د کوچني سره بازۍ وکړي.

په دې ټوله موده کښې ښځه او نر بیزو ګیانې په خوله وی خو یوه ورځ یې د اعتراض آواز پورته سو او په دې توګه یې خپل درد او کرکه څرګندول. دغو دخاوند په مغز کښې دې آوازو کرار کرار داسې ځای ونیوی

چې شپې شپې به نا بو بوره دخو به دا ویښیدی او ماندینه یې دا ویښوله او ورو ته وییل به یې: غوږ و نیسه بیزو ګیانې ناري وهي، په داسې حال کښې چې بیزو ګیانې به آرامې پیده وې.

پروفیسر وویل: د دې پیښې د خپریدو سره سم هغه ته ورغلم او ور ته ومې وییل چې د بیزو بچی مو دا و بلار ته ورو سپارې خو هغه دا غوښتنه ونه منله. ما د دې پیښې د پلټنې او د بیزو ګیانو د شورماشور د څرنګه والي په

غرض د یوه سپین ږیري بومي سره مشوره وکړه. هغه بومي د بیزو ګیانو ته داغې او ور ته چیغې یې کړې، بیزو ګیانې یې آرامې کړې، څه ګړی ورو سته بیزو ګیانو بیرته په چغو بغو شروع وکړه او خپل

بچی یې غوښتی، د بیزو بچی هم د خوږو، د نه خوړلو له امله کرار کرار یې سیکه او مړ سو. د دې پیښې ورو سته د شپې یوه له بیزو ګیانو څخه د قفس دروازه خلاصه کړه او د خاوند د لور ځای ته ورغله پر هغې یې حمله وکړه

او د ځنګله ما بین ته یې بوتله ترڅو چې بیته یې ورکه سوه او په دې توګه یې خپل دادی و اخستی د «موریس متر لینګ» غایه د دې پیښې د ذکر کولو څخه دا ده څو څرګنده کړي چې یوه انګیزه د انسان په ژوند کښې څونه اغیزه

لري او حیوانات هم د خاصو احساساتو او عواطفو څښتنان دي.

دی پخپله یوه لیکنه کښې په انسانانو باندې په دیر بیړه انتقاد کوی او وایي: ځني خلک په عین حال کښې چې زیات عمر غواړي، پخپله د خپل د عمر ورځې وژني. دی د وخت وژل داسې تشریح کوی: سهار چې د خوبه

را کښېنو او خپل کالي اغوندو، د کوره وزو او هڅه کوو چې ژر ماپښین سي. هر ګړی ساعت ته ګورو چې ورځ موځونه تیره شوی ده. که ساعت مو کراروی ورځ مو هغونه ترخه وی، ساعت ته بد وایو چې ولی مو خطاباسی

او ولی مو د نورو ورځو په څیر د غرمې ۱۲ بجو ته له ژر دې کوي؟.

کله چې غرمه سي او ډوډۍ وخورو، بیا ما ذیګر او ماښام ته سترګی پالو او ورو سته له هغه چې

د استراحت لپاره بستر ته ورسیږو نو تلوار مووی چې ژر شپه تیره شي، سهار سي او له خوبه کښېنو.

په دې توګه تن د سبا او سبا د بل سبا په هیله یو، هغه

وخت چې کوچنیان یو د کوچنیولي د دورې د تیریدو هیله لرو کله چې ځوانان سو نو بیا باطني ندا (آواز) راته وایي: «ته د یوې لویې پیښې انتظار لري» ورو سته له هغه چې لږ فکر وکړو پوه سو چې هغه لویه پیښه چې مونږ

د هغې هیله لرو، هغه عشق او مینه ده.

ورو سته له هغه بیا د راتلونکو پیښو په انتظار یو هغه نو هر ورځ چې وي. په داسې تلوار مخ ته ځو ترڅو یوه ورځ مو د عبرت ځاییږه له خوبه را کښېنوی هغه

وخت ناځاپه وینو چې یوه لویه پیښه زمونږ په انتظار ده.

دا پیښه پرته له مرګه بل شی نه ده.

هو، مونږ د عمر له شروع څخه، لکه یو مین چې د کوڅې بغل ته ولاړ وي او د خپل معشوق د راتلو په هیله دقیقې

او ثانیې شمیري، د مرګ له پاره دقیقې شمیرو او ور ته نه پوهیږو.

## د ژوند پوه

ستر ګې تل خلاصې ساته چې له پانده ژوند انه سره مخامخ نه شی.

☆ ☆

محبت یو طلائی زنځیر دی چې آسمان له ځمکې سره نښلوي.

☆ ☆

د شخص روغتیا په اجتماعی روغتیا کښې تأمینیږي.

☆ ☆

خپل ځان او روح په ظلم تیری او د خلکو په ځورولو مه اموخته کوه.

د رحمت الله مېړ ولدز باړه:

# بابا نانک څوک وو ؟

بابا نانک د هندوستان د سکانو د طایفې مشر دی چې د ۱۴۶۹ کال د اپریل په ۱۵ نیټه د (تولواندی) په سیمه کښې چې د لاهور د جنوب لویدیځ په څلویښت میلې کښې پرته ده، زېږېدلی دی.

ویل کیږي چې پلار یې (لالو مهته کالو چند) چې د خپل کلي میرزا د امانت او دیانت درلودونکی و، خلکو د دغو ښو او غوره اخلاقو درلودلو او امانت ساتلو له امله، ډېر احترام کاوه خو کله چې یې زوی پیدا سو سمدستي یې هغه د کلي و یوه روحاني سړي ته بوتی او د هغه مشورې و غوښته چې نوم پر کښېږدي نوموړي روحاني یې پر زوی باندې د «نانک» نوم کښېښود.

نانک اصلاً د هنود د خلکو د مذهب نوم دی او د (بابا) کلمه چې په ترکي ژبه د (پلار) او بابا په توګه خلکو لپاره استعمالیده وروسته د نانک پر نامه باندې زیاته شوه چې په نتیجه کښې په بابا نانک سره مشهور سو. دلته باید زیاته سي چې د (بابا) اصطلاح پواخې د افغانانو له خوا او نه استعمال سوی ده خو په تواریخ کښې د ګرو نانک نوم ثبت دی.

نانک د خپل ټول عمر په موده د شرافت او اخلاق نمونه او د خلکو سره یې ډېره ښه او نیکه رویه درلوده چې د همدغې ښې رویې له امله و له خلکو د احترام په سترګه کتل او محترم یې ګڼی حتی مسلمانان لاهم د ده د ښو اخلاقو او عالي رویې ممنون وه. تر ډېر اندازې چې د ده د ژوند طرز او صوفیانه طرقي دی د مسلمانو په نظر درونه ګران او محبوب کړی وُ چې په دې مرګه یې پر جسد د مسلمانانو او هندوانو ترمنځ زیاتی مناقشې منځ ته راغلی یعنی مسلمانانو مسلمان باله او هندوانو هند و مسلمانانو د هغه د لاپلو په اساس چې درلوده یې ځکه یې نو دی یو صالح مسلمان او صوفي باله خو هندوانو مخصوصاً سکانو دی د یوه نوی هندو ئیزم د مذهب مؤسس باله.

د مسلمانانو دلائل د ده د مسلماني په باب، صوفیانه فکر و ته د خدای پېژندنه او فقیري وه ولې چې نانک د بتانو د پرستش، شرک او د اور د پرستش سخت مخالف وُ بیله خدای [ج] څخه یې و بل هیڅ شي ته عقیده نه درلوده مساوات یې تر هر څه زیات خوښ وُ او د اسلام د مبین دین د قوانینو زیات پابند وُ.

## د بابا نانک اټلوېښت او نسب :

بابا نانک یا ګرو نانک په ۱۴۶۹ کال د لاهور په جنوب لویدیځ کښې د تالواندی په سیمه کښې زېږېدلی دی خو کله چې (۷) کلن سو پلار یې د یوه تن چې (ګوپال پنډا) نومېدی ورسپارلو چې و تحصیل ته دوام ورکړي خو نانک د خپل ښوونکي ترنظر لاندې لوستل، لیکل او ریاضي زده کړه.

ده د خپل تحصیل په دوره کښې د ښوونکي څخه تل داپیانو په باب پوښتنی کولی تر ډېر اندازې چې کله کله به یې ښوونکي لاهم د جواب ورکولو قدرت نه درلود. چرنګه دی ښوونکي یې په ده کښې ډېر زیات استعداد او قوت لیدی ځکه یې نو د نانک و پلار ته وویل چې ده په روزنه کښې زیات کوښښ و کړي.

په دې اساس یې نو پلار خپل زوی یعنی نانک و یوه بل لوی ښوونکي چې (پنډت برج نات) نومېدی ور وسپاره تر څو د سانسکریټ ژبه زده کړي او په دې برخه کښې یې هم خپل لوړ استعداد ښکاره کړي اوورو ستنه یې بیا و یوه بل مسلمان عالم ته چې (سید حسین) نومېدی بوتی. خو نانک د هغه مینی او هیلی په نسبت چې داپیانو سره یې درلوده پ هلي موده کښې نی زیات شهرت وموند.

نانک زیاتره ګوښه توب خوښاوه له همدې امله یې داهیله درلوده چې د صوفیانو او جوګیانو سره یو ځای په ځنګله کښې وي. ★

★ بلاړ ئې هر څو ته کوښښ وکړ چې دی د بوره کسب ښختن کړي خو نانک نه قبلول بلاړ ئې وویل :

«ته باید یوه داسې خدمت ته داخل شې چې د عمر تربابه دې ژوند تأمین کړي » نانک به

جواب کې ورته وویل : «زه بیله چوپړه د بل شي ته یم او تل کوښښ کوم چې خپل وظایف د خپل حقیقي

بادار خدای (ج) په حضور کښې په ښه ډول سرته ورسوم» .

له هغه ځایه څخه د هغه د خدای

پیوندونکی او هو قیافه تفکر اړونکی په صفت زیات شهرت د موند او دغه شهرت ئې سبب سو

څو یوه زیاته ډله خلک د ده بد بینه کړي . بلاړ ئې فکر کاوه چې زوی ئې لیوني سوی دی نو د وحی

ډاکتر ته ئې ورسټاوه مگر نانک چې د ده . به خپله وینا د الهي عشق ناروغه ؤ ، د ډاکتر څخه هیله

وکړه څو د دی د زحمت سبب نه شي

او ورته وئې ویل « زه باور لرم چې ستا د ملهم نه کومه گټه نه لري

ځکه زما ناروغي روحي ده نه جسمي زه د عشق د درده ناروغه یم او هغه

الهي عشق دی چې زه ئې ناروغه کړی یم یوازې پاک خدای [ج] کولای سی چې زما د ناروغي

چاره وکړي او بس» .

کله چې نانک (۲۷) کلن سو په تبلیغ ئې پیل وکړ او زیات مسافرتونه ئې وکړه هرځای ته

چې به ولاړی هلته به ئې دیني تبلیغونه کول حتی د مدینې بر

دملالی په قلم

# یتیمه زنجلی

ما ته مه وایه چې ته څوک ئې دا ځکه چې ته تر ما هم ښه پوهیږې چې یوه یتیمه زنجلی یم چې د قولو نعمتو څخه چې ته او ستا څواندي نو د هر څه اري آ او زه ئې بر خې یم .

لودئې هم سفر کړی دی . وېل کیږي چې یو وخت د حضرت محمد [ص] د زیارت ته ولاړ ؤ او ښکلې ئې توبولي کله چې بو ښتنه ځني وسوه ، دی ویل : « د عشق

بحري چې د دې مقام څخه راوتلی دی د بېړیو بېړی بو له پاره ئې د عشاقو د زړونو مځکه تو ده او ځلیدونکی کړې ده» .

د نانک په قولو مسافرتونو کښې چې کړي ئې دي د کندهار یو تن چې (مردانه) نومیده هم ورسره ملگری ؤ

او ده ته به ئې ساز آواز وغاوه . د ده وروستی سفر د افغانستان په شاخوا کښې وه .

نانک په ۱۵۳۹ ء کال د ۶۹ کلونو په عمر د « کرتارپور » په سیمه کښې سترگې له دنیا څخه پټې کړي . داسې

ویل کیږي هغه وخت چې دی مړ شو نو د مسلمانانو او هندوانو تر منځ مخالفتونه پیدا سوه چې مسلمانانو غوښته چې دی ښخ کړي خو هندوانو بیا غوښته څو د

خپل مذهب د مقرراتو له مخې ئې په اور وسوځوي . مگر کله چې ئې جنازه پورته کوله وئې لیده چې د نانک مړی یکښې نسته او پرځای ئې د گلونو یوه

کیڅه پر ته وه . دوی هم د گلونو کیڅه دوې برخې کړه یوه برخه ئې مسلمانانو بوډه ښخه ئې کړه او بله برخه ئې هندوانو بوډه او دوئې سوځول .

زه بیچاره او عبث بشریم چې نه مې د پلار لطف او تربیه ولیده او نه مې د مور د محبت ډکه غیږه .

زما کالی زاړه او ځکر ځکر دی او په ښو ځپلیو نه لرم نس مې وږی او د بوره بې قدره موجود خوندي د تکلیف او عذاب ژوند تیروم .

ای حساس او دردمند انسانه ! راشه ان زما او زما په څیر د نورو غریبو مخلوقاتو غمخوري

وکه نمونږ سره مرستې او مرسته په ده یواړ پر مختگ ته گټه ورسوي او هم به په دې ډول د پاک خدای [ج] او مخلوق رضایت حاصل کړي .

افکار : ژباړه:

## کتاب

کوم کسان چې ښه او عالي افکار ئې ملهوي هغوی هیڅکله یوازې او بې ملگري نه دي .

(فلیپ سیډني)

کتاب یو داسې ښوونکی دی چې بیله چلاخې څخه موږ تربیه کوي او موږ د احسان مرهون گرځوي .

( ... )

د نړۍ د لویانو سره آشنائي او خبرو کولو بواځنی لاره د هغو د آثارو مطالعه کول دي کوم

چې هغوی سره له کاله د مخه مړه شوي او اوس ترشا ورو لاندي دي .

(دکارت)

د پیغلی پر ښځنابخش کی څیړنه:

# په پاکستان کښې د واده مراسم

په پاکستان کې د واده رسم او رواج داسې دي چې ځوانې په کور کښې لکه میلمنې داسې وي.

دلې وخت له پاره ئې په عزت کوي تر څو چې د خپل څښتن کور ته ځي او په هغه کور کښې ځان ته مسؤلیت

پیدا کوي د میړه ځا کل ئې د والدینو وظیفه ده.

مور او پلار، د ځلې د کوچنیوالې څخه د هغې د میړه په فکر کښې وي. کله چې ځلې څه سې نو ئې د پوښ او پسول په فکر کښې سي. هغه وخت چې ځلې

د میړه کور ته ولاړه سي، نو د دوي وظیفه سرته رسیږي او پر آرامه کیږي.

د واده جشن یوازې د ناوي او زوم د خوشحالې شپه نه وي، بلکه د ناوي مور او پلار هم خوشحاله وي ځکه لور ئې په ښه عزت د کوره څخه وزي خو سره له هغه بیا هم خفه جن وي چې د زړه ټوټه ئې ځنې جلا کیږي.

د زوم مور او پلار زیاتره خوشحاله وي، چې نوی ناوې ئې د کور ته راځي.

د ځلې په خوښتنه کښې د دواړو خواوو رضائیت د دوو پلار لپاره د شاهدانو په حضور کښې څرګندیږي وروسته تر هغه قاضي او ملا راغواړي او نورو میلمنو ته بلنه او شیرینې ورکوي څو د اد دهم یاي ته رسیږي

مګر د اجشن په ورځو ورځو دوام کوي او د ناوي ټوله پوښ د ناوي په مور او پلار پوري اړه لري.

د څه مودې دپل چې زیاتره د ځلې کورنۍ لېږ خوا بدې وي، ځکه ځلې ئې د کوره څخه ځي، نو ددې سببه، زوم په کوچنې کوچنې لرګو سره چې په ګلانو ئې پوښلې وي وهي او په بدلو کښې یو د بله ستاینې سره کوي.

د زوم خوا د ناوي خواته او د ناوي خوا وزوم ته په بدلو کې یادونې کوي او ننډي او دوستانه خبرې سره کوي.

بل شي چې په ټولو دوو کښې سره یو شي دي هغه دادي

چې پر ناوي زوم یو دي وهي او زوم ته آزار ور کوي مسخرې پر کوي او هغه ته داسې ښکاره کوي چې د بل نا زولې ځلې ګټل آسانه کار نه دي.

بو ټوټه ئې ځنې پټوي چې دي د ځوانې څخه وزي ځواني لار ورته نسي او یا ئې مجبوره کوي چې یاڼ (یو قسم د خوړلو برګ) وخوري، په یاڼ کښې انګشتري

ورته پټه کې چې دی ئې وخوري انګشتري په خوله کښې ورشي او په بیلو بیلو طریقو ئې زهیروي د لچسپه ئې داده د مخه تر دې چې زوم د ناوي مخ وویني ورته وایې «ښځې زه ستا مریې یم»

دوستان او خپلوان ئې نغدي پیسې ور کوي یا سوغاتونه ورته راوړي ددې کار څخه مقصد دادی چې یو د بله سره مینه او محبت پیدا کړي.

دوانه کار دونه ټول له ښځې پر اوده اخلي ځکه د رسم او رواج هم د ښځو د خوا منځ ته راغلې دي.



## ولور:

بله موضوع چې د توجه وړده هغه د ولور موضوع ده

که په کلي کښې وي یا په ښار کښې، پر نجلۍ باندې ولور اخلي. پسله ډیرو خبرو اترو چې د دواړو خواوو نماینده ګان ناست وي، ولور ټاکل کیږي. په هره

اندازه چې هلک وس ولري، په هغه اندازه یې ولور ورکوي.

په پاکستان کښې دوه ډوله ولور اخستل کیږي یو ډول یې معجل ولور او بل یې مؤجل ولور دی. دوهم ډول یې ډیر رواج لري چې دا ولور د میړه د مرګ یا

طلاق په وخت کښې، ښځه اخلي او معجل ولور بیا هر وخت چې ښځې د هغه غوښتنه وکړه، میړه به یې ورکوي.

بخوا ئی ویل ونه که په ښار کښې وه او که په کلي

کښې، په خوراکي ډیر مصرف به کیدل او ترډیرو ورځو پورې به هغه مراسم اجرا کیدل. حتی دا ویل ونه به د نجلۍ په شاهي قصر کښې کیدل او هر چا چې به چه واده

وکی هغانو ته به یې معتبره ښکاره کول خو نن ورځ هره کورنۍ په هغه اندازه توان نه لري، بیا هم د خپل توان په اندازه ودونه کوي».

ځکه دوی عقیده لري چې «د ښه واده معنی دا ده چې لکه یو غوټه چې موټی لاوټینګه یې کو بیا یې نو خلاصیدل په ډیره سختۍ سره وي.

### د ناوې کالي او زیورات:

نجلۍ چې لا کوچنۍ وي مور او پلار یې د کالو او زیور په فکر کښې وي. کراد کراد یې کالي او زیور جوړوي. کله چې یې د واده وخت راورسیږي. بیا د

د نجلۍ مور او پلار شیانو باندې نظر وا چوي که کوم شی کم وي ور پوره یې کی. او لازم لباس ور جوړ کی. په پخوا وختو کښې چې به ناوې د میړه کورته ولاړل

چې یو کوچنی شی به یې کم ؤ نو خسر ګنۍ به یې د ناوې کورنۍ ته بد ویل او ملامت به یې بلل ویل کیږي چې د مغلو په وخت کښې د بوې شاخانې واده ؤ، ښه پوښ او

پسول یې ورجوړ کړی ؤ چې، ترهر ځه یکښې موجود وه، خو د واده په شپه چې بې ناوې د پوښ او پسول سره د میړه

کورته بیول پرلاري باندې شپه سول. مجبوره وه چې پرلاري باته شي نو کرانو دیني خیمې راو کښلی او غوښتل یې چې ورته یې دروی هر څه پوره وه. مګر د بده مرغه چکش یې هیر سوی ؤ آواز نه کیده. سول چې چکش نسته

خیمې به څه شی ټکوهی - دزوم مور چې دا خبره واوریدل په ډیر قهر سره یې وویل چې چکش نسته نو مجبوره یاست چې د ناوې په سر یې ټکوهی.

دا ځکه مور او پلار یې دی چې چکش یې په پوښ کښې نه دی ایښی؟

مګر نن ورځ دا دود دونه لنز سوی دی دا ډیاوړ شیان و ناوی ته ور کوي سره د هغه هم مینه ډیره هغه کوي چې واده دی سم وی او ښه پوښ دې ورکی. د دی اپاره ځینې مینه دی

پوره ونه کوي او نجلۍ هم د هغه ورځې ځنځه چې ورکیږه سی بیا تر واده تر ورځې ستن وتار د لاسه نه ایسته کوي - ټوله ورځ په کار اخته وي.

د کوږدې مراسم یې ډیر ساده دی، فقط خپل چلپ یو د بله سره ایشوي چې دی مراسمو ته (منګنی) وائی. ناوی سره کالی اغوستی وی چې د میړه د خوا ور کول

شوی دی او د زوم مور یو انګشتری او یو د سپینو زرو چله و ناوی ته ور جوړه کړی دی او فقط یو څو دوستانی د ناوی سره ناستی وي. د زوم مور د ناوی راسته ځنګه ته ناسته وي.

پسله هغه پنځه یا اوه تنی نجونی په ناوی قند یا مصری وخوری او ناوی په ګلانو کښې و پوښی. دوی بدلی او دریې شروع کی.

هغه وخت چې شپه تورهشپه سي د ناوی کورنی یو بله چله د زوم کورته ورووړی او هلته ښادی جوړه سی لکه دمغه چې د ناوی پر کور هم اوس بیا د زوم پر کور هوی.

ددې ورو ستهٔ نو نجلۍ او هلک رسماً نامزاد سی.

په ډیرو ځایو کښې، خصوصاً په کلو کښې، وټولو خلکو ته د ساز په واسطه خبر ورکول کیږي چې څو ورځې

پر له پسې ساز نده ناست وي او ځنې لیری ځایو ته ښځې ورځې خبر ور کوي او بله نمونه یې دا دی چې د کور

خلک د خیزان دلر ګیو یو سا یوان جوړ دی او ټوله تر هغه لاندی راټولیږي بدلی وائی، خوشحالی کوي

ډوډۍ تر هغه لاندې خوري .

## دمايون جشن :

دمايون جشن ئې داوی چې نجلۍ تر واده څو ورځې دمخه په کور کښې ښځې او هغه کوي چې په کور کې څوک نه وينې .

په دغه وخت کښې نجلۍ کم رنگه زعفراني کالي اغوندي پان او اوشيريني په خوري او (بتانا) په

لاسو اومخ وروهي چې ډېر ښه بوئي څي . ورو ستنه نو قوله کور نی ددې څه کريم څخه په ځانو وهي په دې وخت کښې دهلک خپلوان

ډېر کوښښ کوي چې نجلۍ ووينې ، مگر نجلۍ ځان پټوي او ددوي کوښښ بې نتيجې وي .

نو کله چې نجلۍ په واده کې څکاره شي ډېره ښايسته وي څکه داڅوڅې چې پټه وي ، مخصوص گلان پرې خوړي او ښه ښه مقوي

غذاوي په خوري . په نتيجه کښې ناوۍ لکه د څوارلسم سپوږمۍ داسې ځليږي .

ددې دپاره چې ناوي ښه ښکاره سي نو هغه په جواهراتو ، زراو زيور پوښي ، زرين کالي په اغوندي چې ښه وبريښي . دازيورات دناوي

اوزوم دمور او پلار له خوا ورکول کيږي .

دزوم مور او پلار چې بوټ داوړي يو بل جشن جوړوي چې (چارهوا) ئې بولي دوستان او خپلوان سره راقوليږي . او واده

مړ وڅي ښځې (سوهاگنې) په ناوي اميل ، غوږوالې او دست بند اغوندي . حتی غريباني ښځې هم

هڅه کوي چې زرولري . ثروتمندې ښځې چې واده ته ځي د الماسو زيورات په غاړه کوي . خصوصاً

پخواني زيورات ئې ډېر ارزښت لري .

په دغه مجلس کې زرين کالي او

ساړی ، اغو ستل سوي وي او دناوي کالي عموماً ارغواني رنگ ته قاکل کيږي چې هغه د خوشبختۍ او کاميابۍ نښانه ده

هغه وخت چې د ناوي کالي پوره سول يو بل مجلس جوړيږي چې ښځې بيا زرين کالي اغوندي

دناوي د کوره چې دميږه کورته کالي وړوړي ، بل مجلس جوړيږي چې په دې کښې اومړوڅي ښځې دزوم کالي په خونچه کښېږدي

او پرسر يې شيرني او پان وراپېږدي چې دزوم دخپلوانو لپاره وي .

دغه او مړوڅي ښځې قوله د واده مراسم په غاړه اخلي او لومړی ځل دناوي کالي دوی په اغوندي . زيورات ئې ترتيب وي

او شيرني په خوله کښې ور کوي او نکر وځي ئې پرلاسو وراپېږدي . دواده ښځې دناوي دزړه

خپلوانو څخه وي چې خپل دمړوڅي ژوندئي په ښه ډول تير کړی وي ددوي نږ ي تماس دناوي سره ناوي خوشبخته کوي .

### « جشن مهندی »
### يادنکر څو شپه :

يو شپه دواده دمخه دنکر وڅو شپه وي چې دناوي ښايست دوه چنده کوي .

په دغه وخت کښې دناوي خپلوان قواله راقوليږي . شربتي ويشل کيږي دناوي لاسونه او پښې په نکر وڅو سره کې او قواله ښځې خپل ورځوي او تلې سري کوي .

### واده :

کم وخت چې دامراسم پای ته ورسيږي واده شپه راورسيږي . په دې وخت کې زوم دسازندگانو او دځوانانو د

چوب بازۍ سره يو ځای دناوي د کور پرخوا حرکت کوي .

او دخلکو پرسر ورنگه رنگه اوښې چې دشيرني او ميو وڅخه ډکې وي ، وراپېږدي .

که ښځای وي تر يو نيم ساعو پورې دالوښی رسيږي .

دا قوله مېږی دناوي د کور دخوا دهمسايگانو او خپلوانو ته ويشل کيږي .

اوس چې په ښارو کې دگاډيو او آس ځای موټر نيولی دی نو ناوي په

موټر کښې دميږه تر کوره رسوي .

فقط چې دنکاح مراسم خلاص شول ددوستانو په منځ کښې خرما ويشل

کيږي او سازنده ساز کوي ، خلک د ناوي او زوم دخوشبختۍ دپاره دعا کوي

او دخدای څخه ددوي سلامتی غواړي .

اوس نور رسومات يا دواجونه

شروع کيږي هغه داوي چې د ناوي دوستانې نجونې زوم په عذابوي او ډول ډول شوخي ورسره کوي شايد په

پاڅه بوډي ئې دآينه مصحف موضوع

وي چې په دې وخت کښې ناوي او زوم د لومړي ځل لپاره يو دبله په هنداره کې

سره وينې او يو لوي ښو چې دزرين قو کره څخه جوړ سوی ی ر زوم او ناوي ...

✽ بالدې اچوي ـ پسله دې چې په هنداره کښې يې سره و کتل زوم «سورة اخلاص» وائي چې دا د مهر

او محبت سوره ده بخوا به ئې د هندارې پرځای په انګشتري کې کتل چې د انګشتري په دغه پرځای

به ئې هنداره ایښې وه. ناوې به ډېره شرمېدل سر به ئې کښته اچولی ؤ. زوم به ورته وويل

(ګرانې ښځې زه ستا مریې یم ستر ګې خلاصې که) زوم به ښه په غور وناوې

ته و کتل، دا کتل د دې دپاره وه چې ناوې پر ګرانه سي.

زوم پر تخت ناست وي پر ښو بالدې بوزدېنګو کرود اچوي، چې دا ګو کر د ناوې خور یا یوه

بله نژدې خپله ښځې بېځ کي ترهغو ئې نه ورکوي چې د زوم څخه پېسې وانخلي.

په دغه ډول نجونې په څو بلا د زوم څخه پېسې اخلي. زوم چې ولاړېږي نجونې په لاړ کې ورته

ولاړې وي لارنه ورکوي چې پېسې ځنې وانخلي. او یا د نکریو څو پښه ترهغو نکر وځي په ودغوی

نه وراېږدي چې پېسې ورنکړي.

وروستي مجلس چې د ناوې په کور کښې پای ته رسېږي (دخصتي) بلل کېږي.

دا مجلس ډېر دهیجانه څخه ډ ک وي او ښځې په لوړ آواز په کټ، کټ ژاړي په داسې حال کې چې

مسلیانې دخدای په امانۍ مخصوصې بدلې وائي. نارینه ګوله پر ناوې دا ګول وي. بو، بو دخدای په امانې

ځنې اخلي او دخیر دعاورته کوي.

دا هغه وخت دئ چې ناوې وپردې کورته ځي او دګر لو ستر ګې

په داسې حال کښې چې دخدای په امانې اخلي، له اوښکو ډکې وي.

پسله هغه ناوې په موټر کښې

چې په ګلانو پوښل سوې وي دزوم کورته بیابي.

په دې وخت کښې زوم پو لنې

لمونځ دشکر کښلو لپاره کوي چې دالمونځ د ناوې په پوهنې کېږي.

زوم او ناوې اوه بلا په داسې

حال کښې چې دخوا نانو نادې او غالمغال وي بو د بله شپږ پرنج سره ور کوي او دا مجلس دشپې

ترنیمايي پورې دوام کوي. په

دا بله ورځ دزوم کورتنې پو لو په میلمستیا کوي چې (ولیمه) نومېږي دزوي دواده اعلان کوي اوس نو

دواده مراسم پای ته رسېږي

مګر دامجلسو نه ترهغه وخته پورې ادامه لري ترڅو چې اول اولاد

پیدا کېږي. او ناوې دزوم په کورکې اموخت نيسي ورو سته

ئې نو په کوچنۍ ساعت تېروي.

(بای)

# دتورو متلونه

څوک چې خپل پور ادا کوي

خپله بانګه زیاتوي.

(انګلیسی)

څوک چې په پور میلمستیا

کوي داحمق نه په کمه نه دی.

(عبری)

ښځه او پور پوښان دی په هره یوه چې اخته شوې بیادې

خلاصیده نشته.

(فرانسوي)

هر کله چې یوه میلمستیا دې

جوړه کړه بیا یوه هفته زیاته

سپما و کړه.

(سکاټلینډي)

په میلمستیا کې چې هر څومره

زیات خرځ وکړی په پای کښې د

میلمنو هېر یږي.

(انګلیسی)

خجالت څه موده وروسته

له منځه ځي خو پور د تل لپاره

باقي پاته کېږي.

(چیني)

# د ژوند لپاره

بلارمې ماته کار کول د ازده

کړل له دا چې تش د کار سره مینه

ولرم.

(لینکن)

دیوه انسان لپاره دا شرم او

عار دی چې مسکین او نادار ده

دی خو په هرصورت د احالت ئې

د پرېشانۍ او تکلیف سبب ګرزي

(سبدانې اسمیت)

انسان که نارو غه وي او کار

و کړي تر دې ښه دی چې جوړ دې

او خپل ژوند او قیمت بها وخت

په بېکارۍ تېر کړي.

(ګاذیون)

هر څوک د خپل عمل

باداش او نتیجه وینې.

(باخ)

د ساینس هورایزن امریکائي مجلې څخه : د عبدالخالق سلطانزي ژباړه

# په فضائي لابراتوار کښې

# د ژوندزده کړه

لومړنۍ امریکائي ورکشاف چې «سکای لب» نومیږي تماکل شوی دی چې په راتلونکي کال کښې و فضا ته وتوغول شي .

هغه مالزمه چې «د سټرن» راکټ په دریمه برخه کښې د دغه سټیشن د فضائي کار کوونکو د مرستې لپاره ځای په ځای کیږي دوروستیو ماموریتو دپاره په لوړه پیمانه مطرح شوی ده .

څرنګه چې په هره نوي وظیفه کښې د فضائي کارکوونکي ډلي دپاره یوله د مخني کاروونه ضروري دي په دې اسټیشن کښې هم دورکشاپ د کار کوونکو او انجینیرانو لپاره ډیر فعالیتونه ضروري دي چې اجرائي کړي .

دوی دا لپاماد اپالت په «هینټي سویل» کښې چیري چې «سټرن» سیوږمی نومی راکټ فعالیت کوي او پراختیاموسی په تعلیم او د آلاتو دازمویلو په چول چول مماد لو بخت دی سکای لب موظف شوی دي چې له پیلهٔ انسانانو د کیپ کینیډي څخه و توغول شي او ۲۳۰ میله د پاندې په مدار کښې ځای پر ځای شي او بیا په یوه ورځ وروسته یو بل راکټ و فضا ته واستول شي او ددغه ورکشاپ

سره په ونښلي او په هغه کښې عمله به ۲۸ ورځې ژوند وکړي وروسته به دتېلو د ډېرلرونکي ترتیبات چې (ماډول تې بولي بیرته راکټ ته داخل او دا سټیشنه به د مځکې پر لور راپیل او په بحراتلانتیک کښې به کښته سي .

تو موډی ورکشاپ به ددروفضائي دلولپاره بوده اته میاشتي په مدار کښې پاته شي ، په لومړۍ مرحله کښې به د بیړۍ د عملي فیزیولوجیکي او سایکولوجیکي حالات وازمویل شي .

په دوهمه مرحله کښې به دلمرد راتګ په یوه لوحه باندې داغو نیاو وازمویل شي .

د دریمې مرحلې په اوږدو کښې به د مځکې لپاره ګټور علمي قراین او دلایل داغونه کړي .

دستو دو بو هانو ډلې به په یوه داسې فضائي کوټه کښې ژوند وکړي چې هغه د هره پلوه اصلاح او امتحان شوی دی .

دغه دوې مساوي برخې ورکشاپ دا پېلو د قوماندې د بیړۍ دې دواړه لو بښت لري او دلاندې برخې په ځان کښې لري :



د کار کولو ځای ـ د خوب او د برابرولو ځای د استراحت ځای، د فضا د موادو ځای او د ازمویښتو ځای.

په دې دستګاه کښې بوره اندازه او په اوږد تنفس د پاره هوا د چې عبارت له (نایتروجن او آکسیجن) څخه ده د اتو میاشتو د پاره موجوده ده.

او هم د (۱٤۰) ورځو خواړه او په او هوا برسیره پر هغو اتو میاشتو د احتیاط په ډول په دغه بېړۍ کښې شته.

هغه کسان چې په دې اسپوتنیک کښې فعالیت کوي دوه ځلې په اتلس ساعته کار وکړي او بیا به د ماښام ډوډۍ خوري او وروسته به

څلور نفر بېخي لویږي او یا به د کتابو په لوستلو د داتلو نکي ورځې د فعالیت د تیارۍ د پاره مشغول او په دې توګه به

خپله ستوماني لیرې کړي.

لومړۍ ورځ له چې فضا ته استول کېږي په دې کښې اصلي مقصد

دا دی چې دوی به تر هغې ډولې چې بېخي وروسته په وفضا ته واستول شي په بې وزنه هوا کښې د بوې ډېرې مودې له پاره پاته شي

په دې کار کښې به د انسان طاقت د سپوږمۍ د سیستم په مقابل کښې وکتل شي او هم به په دې لیار

کښې ډېرې زیاتې پلټنې او پرمخ تګونه لاسته راشي.

په سکای لب کښې د کار کونکو د پاره درې مهمې سیمې موجودې دي:

دخوب سیمه د ساتنې سیمه او د فضله موادو سیمه.

دلاندې منزل پاته برخه د طبي

فعالیتونو د پاره ځانګړې شوې ده. او ورځنۍ طبي ادارې وظیفه به د انسان د طاقت د لوړوالو د پاره

په بوره بې وزنه یعنې صفر هوا کې چې د وې او ږدې مودې له پاره پاته کېږي مرسته کول دي.

سکای لب پر اصلي تو تو برسیره دالاندې برخې هم لري:

د هوا د رڼا لرونکي کاپ، د هواد کمښت اصلاح کونکي

ضریب، دا پولو تلسکوپ او د نړۍ لو یا د ارتباط آله (چې د سکای لب سره کومه بله راکټ تړي).



(د ۱۰ مخ پاته)

## د امازون په ځنګلو...

او که پر مچکه ځنې ولو یده بیا یې نه پورته کوي او نه یې خوړې دوی د هغو بېزو ګانو په شان دي چې په باغ وحش او ځنګلو

کښې یې وینو او د هغو سره زیات شباهت لري پو د خصوصیاتو څخه د کا فتانیانو دا دي چې خپلو

ځانو ته یې د ونو څخه ځانګړي جوړې کړې دي او هیڅکله پر مچکه نه بیده یږي لوی او کوچني یې هر یو خپل ځان ته جلا ځانګو لري د دې

علت د ځینو خطرناکو مارانو او د بدو حشراتو او د خزندګانو څخه ځان ژغورل دي چې د هغو زهر په یوه

دقیقه کښې فیل وژني.

لنډه دا چې د کالا پالو د قبیلې

او سیدونکي ۱۲ ساعته بیده یږي او نور ۱۲ ساعته چرت وهي د هغېږي ایستلو په وخت کښې چې د دوی

د ساعت تیرې د پاره دي هیڅ خپه او قهرنه کوي او وروسته ترغیږې خپل ځانو نه پود پله دغاورو څخه

پاکوي او د قبیلې قهرمان هغه دی چې ۱۳ تنه مات کړي.

عجیبه ده چې ښځې حق نه لري

د کنسرت و سالون ته چې هلته نو لکي وهل کیږي ورسي حتی په غلامم نه ورځي.

هغه وخت چې ښځه حامله یا امیندواره وي د ښو یوه توده تسمه ترملا پېچي او هلکان او

نجونې مؤظفې دي چې د حاملتوب په وخت کښې تر ان پورې یې دي چې ښځو ته نژدې ورسي.

(پای)

## ګټوري خبري

دلاړې د معلومو لود پوښتنې په کولو کښې شرم مه کوی او کنه دی، نو بیا به لار درڅخه ورکه شي.

☆☆

په دنیا کښې به داسې هیڅ یو سړی پیدا نه شي، چې خوښي او خوشحالي خوړ ته په لاس ورغلی وي، مګر او ښکې یې توی شوې نه وي.

☆☆

هغه سړی واقعاً ستاسو دوست او خپل دی، چې سمه لار تاسو ته ښئي.

صدیق الله «اجتماعی»:

دوهمه برخه:

# عالي انسان

آیا ددوی دغه فداکاري زموږ شتمنو بډایانو او دمعنوي شخصیت خاوندانو ته زموږ دملي تنظیم دسمون په لار کښې دعبرت درس نه ورکوي ؟

داسلام مقدس دین چې علم پر نر او ښځه فرض بللی دی آیا علم بې له سواد څخه امکان لري چې حاصل شي ؟

که چېرې زموږ نیمګړې تیاري او دهغوي اړخونه پوره مطالعه کړو نو ناپوهي او بې سوادي به ئې لومړۍ درجه علت وي .

اوس زموږ په خپل ګران هیواد کښې دنورو عام المنفعه مؤسسو په قطار کښې یو لړ مؤسسې لکه دمیرمنو ټولنه او په هغوي کښې ورکتون، دسواد کورسونه او نوردا سې عالي کارونه وینو او لیدل کیږي دغه کار زموږ ته زموږ د اولاد دونو په روزنه کښې دآینده بوخلاندهٔ لمر زیری راکوي او موږ باور لرو چې ددغسې دستګاوو او مؤسساتو کارکوونکو په رشتیا سره خپلو ځانونو ته د عالي انسانانو لقب ګټلی دی او دوی ته ددغه لقب د ګټلو مبارکي وایو دغه ځای ډېر

دافسوس دی چې په ملیونو انسانان زموږ په ګران هیواد کښې چې زیاتره ئې زموږ خوېندي دي دسواد دنعمت

څخه بې برخي پاته دي . او سنی نړۍ او موږ څخونه فرق لرو که چېرې موږ د نړۍ ملتونه لږ مطالعه کړو و به وینو چې ددوی په پرمختګ کښې تر ټولو ډېر منی لوی نقش لري او هغه خدمتونه چې دوطن په لار کښې ئې ترسره کړي دي ، ښځه تر دوې اضافه کړي دي حتی دهېڅو هیوادو سیاسي قدرت تر ډېره حده دښځو له خوا مخ ته بیول کیږي .

زموږ بدبختي هم ددغه ځای شروع شوې ده چې ښځې مو بې سواد او بې تعلیمه دي ، کله چې اولاد و نه ئې روزي هغه هم په بې سوادۍ غېږ کښې لوئیږي . او په آخر کښې کور ، کورنۍ ، کلي او ښار د ناپوهانو مرکز شي . په هر صورت پوهان عقیده لري چې هر وخت دی دتاوان مخ نیوی وکی دګټې خاوندئې ، راسي چې په ګډه سره دپوه پاک ایمان ، پاکي عقیدې او حقیقي پوه والي له لارې ددغسې ناروغي (بې سوادۍ) له منځه وړلو ته ملاوتړو ، څو بریالي شو .

بډایان او شتمن خیر غوښتونکي مادي فداکاري وکړي علما او پوهان په کورنیو او مجلسو کښې تبلیغات وکړي ښوونکي او محترم استادان دخپل توان په اندازه عملي برخه واخلي څو مو دغه ملي ارمان پوره شي .

دناپوهانو او بې سوادانو ضرر یوازې وخپل هم نوع ته نه دی متوجه بلکه ډېر حیوانات هم ددوی د جبر څخه په عذاب او دغه بې ژبې بې ګناه حیوانان له دوی څخه ډول ډول آزارونه ویني دمثال په توګه وینو چې په ښار کښې ګاډیوانان څو نه ظلمونه دخپلو آسانو سره کوي . دغه ډول ظلمونه په بېلو بېلو حیوانانو کښې لیدل کیږي دا ټول دپوه او ښوونکي وظائف

څکه دا نه دی چې دناپوهانو او بې سوادانو ضررونه خطرناک دي که چېرې موږ داسلام دستر پېشوا حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دژوند تاریخ مطالعه کړو او هغه ازارونه او تکالیف په غور سره تر نظر تېر کړو و به وینو چې دغه دبشر حقیقي ښوونکی او رهنما ته هم د دغې طبقې له خوا په بېلو بېلو ډول کول کیدل او دآنحضرت صلی الله علیه وسلم صبر، حلم، او ګذشت همدا ډول هغه عالي، اصلاحي او علمي تدبیرونه چې دغه مبارک کې دآسماني باعظمته

کتاب قرآن کریم دارشادا دتو سره سم د قوم د سمون لپاره نیولي او په کاراچولي او دخپل قوم نر او ښځه ئې دعلم په زده کړه

دپوه مهربان ښوونکي او معنوي لوی غمخور په صفت تر خپلې پاملرنې لاندې روزل او یا په عالم

اسلام کښې ئې په ټولو معناو سره دعلم، فضیلت ، عدالت او شجاعت سخاو، او نورو عالي صفاتو خدمتونه یو په بل پسې کول چې حتی نه یوازې

اسلامي نړۍ په ویاړ بلکه د اسلام مخالفینو هم ددوی
په لوی والي اعتراف کړی او د قدر او احترام په سترګو
ورته ګوري او دغه ټول په لومړي سر کې هغه کسان وه چې

خیر البشر د دوی د لاسه همیشه آزار، ورو سته بیا ټول
دغو کسانو د پیغمبر ص او ښه تعلیم په برکت د عالم اسلام
د عالي شخصیتونو په قطار کښې ځای ونیولی، او د خپل

وفادار مشر حقیقي ملګري ئې کوله، څو د ګڼو
کوښښ په برکت ئې اسلامي شریعت و ختیځ او لویدیځ
ته ورساوه.

د قریشو د وحشي قبیلو هغه ظلمونه چې د خپلو ښځو
سره ئې کول او د دوی سته ئې عار بلل او ژوندۍ ئې
ښخولې د اسلام د مقدس دین په برکت مساوي حقوق

پیدا کړل او همدا رنګه اسلام او اسلامیت ټول هغه وحشي
متعصب، ظالم او جابر کسان و ترټله چې د خپلو ښځو
سره به ئې غیر انساني سلوک درلود، د غه رنګه لکه په

نارینه وو کښې چې لوی او نابغه کسان منځ ته راغلل په
اسلام کښې همدا رنګه د قرآن عظیم د ارشاداتو او د حضرت
رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په زیار او زحمت سره فاضلې

عالمې، مجاهدې ښځې پیدا شوې چې د خپلو
اسلامي ورو نو سره ئې څنګ په څنګ ډېر بډونکي
خدمتونه وکړل.

کاشکې هم اسلام او د هغه لارښوونکو د ښځو د
حقوقو په اړه ژوندی کولو ډیر زیار او زحمت ګاللی دی
ولې بیا هم زموږ په هیواد کښې ئې د وحشتناکې سته او

ډیر داسې ناپوه خلک ليدل کیږي چې د ښځو د حقوقو
څخه بالکل بې خبره او که خبر هم وي نو ناپوهي او تعصب
ئې د حق او حقیقت سترګې ړندې کړي دي او نه غواړي

چې د غه ډلې ته هغه حقوق چې خدای [ج] د نارینه ور سره برابر
له ځینو موارد و پوښانو او برابر ور کړي دي، و خپلو
اوږو، خوېندو او مېرمنو ته ورکړي. نو په دې توګه

زموږ د ښځو ژوند یوازې ژوند بلل کیږي چې په دې
نړۍ کښې شپې او ورځې سبا کوي.

بیا هم د دغه دردونه بار مسؤلیت د وطن پر علماؤ،
پوهانو او ښاغلو ښوونکو باندې و دغو ډول چې ولې
ئې په دې لار کښې مبارزه نده کړې او که یې مبارزه

کړې دي ولې ئې نتیجه نه ده ورکړې او ولې پدې لار کښې
همیشه د ناکامیو سره مخامخ کیږي او علتونه ئې څه شی دي؟
دغه کار په کوم شرایطو کښې مخ ته تلای شي چې زموږ
خوېندې او ورونړه باسواده شي او پدې لار کښې ئې

د چا سره مشوره کړي، وچا ته ئې تبلیغ کړي او څوک
ئې تشویق کړي دي؟ دا ټول هغه حیاتي سوالونه دي چې
زموږ د ټولنې خیر او نیکمرغي په هغه پورې اړه لري د یوه
هادي او عالي انسان ترمنځ توپیر او بیلوالی هم دلته

کوم چې. د وطن د اساسي ناروغیو او د قوم د دردونو
لپاره څرنګه نسخې لیکي او څه ډول رقم تداوي کوي؟ او
پدې لاره کښې تر کمه وخته پورې مبارزه کوي او

څنګه به د دغې ملي خدمتونو افتخارات په لاس راوړلای
شي؟ دغه وه د محترم استاد پوه، عالم او فاضل، هوښیار
وظائف چې په لنډو ډول عرض شول.
زموږ په ټولنه کښې د ټولنې دغو ناوړه چال چلند او
په قوانینو تیری، د مامورینو ظلم بې عدالتي، بډې اخستل
او په وظائفو کښې شخصي اغراض ټول هغه علتونه دي چې
زموږ جامعه ئې د مځکې وهلې ده.

د مثال په توګه که چیرې یو قاچاق وړونکی په دغه
باندې ډاډه نه وي چې زما د دغه نا مشروع عمل څخه د
قاچاق د بندولو د مسؤل مامور د ګرفتاري په وخت
کښې په بډې ورکولو، واسطه کولو او نورو ناوړو
چالونو ځان نشم ژغورلای یقیناً چې د دغه بد شغل څخه ډډه
کوي.

دا ته لومړۍ موږ د ټولنې د دغه متجاوز او بدکار
ډلې (ګریزي کونکي) څخه څو سوالونه کوو چې آیا
پدغه ټولنه کښې (قاچاق وړونکی) تا ته خپل حیثیت معلوم
دی چې ته څو ته د خلکو بدایسې؟

آیا ته پدغه باور نلرې چې په ورځ د محشر ستا د دغه
بدو کړو په مقابل کښې رشوت، دروغ، واسطې او نیښته
په درد نه خوري او د لوی څښتن [ج] په لوی حضور کښې به
په کومه ژبه او کوم مخ او کم عمل ځواب ورکړې؟

ستا دغه مردار مه دنیا، کوټې، باغونه او موټران چې
تا د خپل ژوند په بیه برابر کړي دي ډیر ژر له تا څخه
پاتېدونکي دي ستا اولاد د نه هم په دغه مردار مه نفقه لوی
شوی او پسله تا څخه چې ته به د دغه محاسبې څخه نه یې

خلاص شوي له دوي څخه به دغه
مرداري پيسې به بيلو بيلو گناهو او
داسې بدو لارو مصرف شي چې ستا
د حساب پيڼې به تر بدو بد تر

وروند کړي چې هلته بيا پښيماني
هم گټه نلري .

آيا بل داسې يو کار او يا کوم
شغل ولې ځانته‌نه‌غوره کوی؟ چې
په هغه کښې د شپې د خوب آرامي،
د جسم او روح آرامي، د ضمير او

وجدان آرامي، د کورد ښځو او
خپلوانو آرامي، د لوی څښتن [ج]
رضا او د خپلې خاورې او هيواد
و لو سره صداقت او مينه په هغه

کښې پرته او ملگري دي .
گرانه‌ورورده! تاسو په حق
او ريد لو مه خوا بدې کيږي دا يوه
دوستانه ليکنه او مشوره ده دلته

زموږ هدف يوازې په يوازې تاسو ته
داسې لارښودنه ده چې په هغه کښې
ستاسو پوا بدې نيکمرغي پرته ده
او تاسو کولای شي چې خپل پاته

ژوند که څه هم يوه دقيقه وي د خپل
خير او اصلاح په لار کښې تير کړي
او د خپلو ناوړو عمالو څخه توبه
وکاږی ، دغه ژوند چې تاسې تې

لري ډير خراب ژوندی او ستاسو
دغه ملگري او رفقيان چې ستا
پر دسترخوان راټول دي په حقيقت
کښې ملگري او رفيقان ندي بلکه

مېچان دي چې دسترخوان ټول شي
دوې آلوزي تاسو په فکر وکړی
چې کمه لار سمه ده ؟

د دغه بيچاره او لس سره مرسته
وکړی چې دغه اولس ډېر خواران
يتيمان، کونډ ياني او بيوزلان

لري او دهغوی که ژبه او قدرت
نلري آه-خو لري دغه مظلومان
زموږ او ستاسې ورونه او خوېندي

دي موږ دلته تاسو خپل يوه مشروع
او پاکې وظيفې ته متوجه کول

غواړو چې د خپل دغه شغلونو او
تصميمونو په بدل کښې عالي

کارونه دځان او ټولنې دخير
اپاره وپلټي او د قانون او د هغه

دعامه مصالحو پيروي وکړي .
دمامور او قانون ترمنځ اړيکې او

د موظفو او مسئلو مامورينو
عمال هغه وخت د ستاينې وړ دي
چې په خپله ورسپارل شوی وظيفه
کښې اې په صداقت او بشپړ ايمان

سره قانوني اخلاقي عادلانه
چال چلند، که په وظيفه کښې وي او
که د باندې تر وظيفې ، ځانته
غوره کړي وي دا چې زموږ په

گران هيواد کښې خلک د مامورينو
څخه شکايتونه کوي آيا خلک
حق په جانب نه دي؟

دا چې مامور د کار په شروع
يعني د حاضرۍ پر وخت په خپل
دفتر کښې بيله قانوني عذر څخه

حاضر نه وي آيا مامور صاحب
تاسو ملامت یاست او که مراجعين؟
کله چې وظيفې ته حاضر

سواست او د مراجعينو په کار کښې
ستاسو او يا ستاسو دځانگړي دنورو
غړو له‌خوا د مراجعه کونکو په

کار کښې بيله قانوني ځنډه څخه
ځنډ يعني بېځايه علت اې څه دي .
آيا تاسو ته د مدعي او مدعي
عليه نسبتي دوسيه‌څو واري تللي

او ورغلې نه ده ؟ د دوسيې راز او د مدعي
او مدعي عليه ملامت او حق په جانب
ندي تاسو ته معلوم شوي؛ قانون په مدعي
او مدعليه څه حکم کوي؛ او تاسو کمه فيصله
او حکم کوی ؟

آيا تاسو ماموريت کول دځان او
ژوند د نفسي غوښتنو وسيله گرزېدلې
ده او که د وطن، قانون ، خدای [ج] او
خلکو ته د خدمت په هيله ؟

آيا دغه وظيفه چې تاسو ته سپارل
شوې ده ستاسو د اهليت او لياقت په
اساس ده او که په ناوړوو اسطو او چال
او چال بازيو ؟

آيا چاپلوسي، د آمرانو ته پېږي
ور کول ، او د امرانو نا مشروع خيال
ساتل او د هغوی شخصي نوکري کول
همدا رنگه د مراجعه کونکي او آمرينو
ترمنځ د پېږې اخستلو او سوغات اخستلو
ناوړه کارونه او منځگړيتوب ستاسو
د مقررۍ سببونه او صفتونه دي او که
په وظيفه کښې صداقت لياقت او د قانون
مرعات کول؟

ښاغلی مامور صاحب! تاسو د خپل
هيواد نابوهان، بيسوادان، بيچاره‌گان
او دربدره خلک چې تل ستاسو دميز
ومخ ته ولاړ دي مطالعه کړي دي؛ دا هغه
کسان دي چې نه راکې پيژني او نه روغه
ورغ .. نو آيا تاسې په داسې حال کښې
لاهم د هغه څخه هيله لري چې ستاسې
دپاره پور او دارو کړي او تاسې ته څه
زهر په خوله کښې در دا چوي؟ پر شتيا
دغه کسان د رحم وړ دي چې له يوې
خوا سر او نيم سر عيال وړ په غاړه دي
او د بلې خوا کار نه ور ته پيدا کيږي او
نه چا ته مخ اړولای سی سر بيره پر دغه

ځوانو بدبختو که تاسی د هغه څخه د پیسی هیله وکړی، آیا تاسی په لړی لاس هغوی و فساد ته نه اړباسی.

تاسو یوار په خپل ګریوان کی وګوری او فکر وکړی که چیری تاسو پدغو مصیبتونو اخته شی او دغه خواشینی تاسو ته پیښه شی چی اوس ستاسو دغه همنوع په اخته دی نو څه

حال به مو وی؟ آیا تاسو دغه حال زغملای شی؟ دا ځوله هغه صحنی دی چی یو عالی انسان ئی نشی زغملای.

ښاغلی مامور صاحب! تاسی د دغسی مصیبت ځپلو کسانو په فقر و کښی وروسته تر هری فیصلی او پر دوی باندی د نظر نی ورکولو او حکم کولو سمدستی خپل ځان

مطالعه کولای شی چی کمه فیصله تاسو کړی ده، او څرنګه نظریه تاسو ورکړی ده؟ آیا ستاسو نظریه او فیصله یا حکم دقانون د احکامو مطابق او قانونی دی، او که رشوت، واسطه

او نورو ناروا هیلو تاسی ګمراه کړی یاست؟ که چیری تاسو بیا هم په خپل ګریوان کښی وګوری او فکر وکړی او دغو خوندو منډو پر ځای ستاسو خوراو موراو یا ښځی ته دغسی مصیبتونه

پیښ شی او هغوی یوه بل مامور، حاکم، قاضی وميزوته ودریږی او هغه له دوی سره ظلم وکړی، حقوق ئی پایماله کړی او بدورته ووائی،-

آیا ستاسو به زړه دردنه کوی؟ د دی ځولو خبرو څخه مقصد دغه دی چی ستاسو اعمال د ملت په چارو کښی ډیر اغیزه لری یعنی د هیواد و پرمختګ او و دوستهوالی داداری سیستمونو

په اعمالو پوره مستقیم اړیکی لری که چیری په یوه ټولنه کی امنیت خرابیږی د خلکو ستر ګی سمدستی تاسو ته اوړی. که یو سړی د بل

حقوق و خوری اود مظلوم عرض او داد نه اوری بدل کیږی او برعکس ظالم ته زور هم د تیری موقع ورکول کیږی او ملاتړ یې کوی تاسی منلی شی چی د ټولنی اعتماد مو دلاسه

ورکړی دی. او ستاسو دغه اعمال یوازی تاسو نه بلکه حکومتونه له پښو اچوی او ستاسو د دغه بی عدالتی او جزئی فساد په منځ ته راتلو سره د عامه خلکو احساسات پاریږی

او په اداری سیستمونو باندی بی اعتماده کیږی.

دا به څومره خوندلری چی تاسی د یوه عالی انسان په صفت پر خپل نفس حاکمیت ولری او په خپله در سپارل شوی وظیفه د لوی خدای (ج) او قانون له حکمونو سره سم په متین عزم،

قوی ایمان او صداقت سره ترسره کړی دغه معنوی خوند او فضیلت تاسو یوار امتحان کړی چی دغه څومره مزه لری هغو نیکبختانو چی د معنوی فضیلت پر چینه او به څښلی دی هغوی

بیا خپل شونډان د دنیا په حرامو او ناوړو شیانو باندی نه دی ښورولی تاسو دغه څو شپی بیوفا ژوند څخه ډېره وکړی او دغه ژوند د ابدی ژوند د نیکبختی لپاره چی د لوی خدای (ج)

د مخلوق خدمت دی وقف کړی او تاسو ډاډه اوسی چی خالق (ج) ستاسو د دنیا او آخرت د خوښیو او خوشحالیو د برابرولو کار ساز دی ښه به داوی چی تاسو پدی جهان کښی د

حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د دغه وینا مطابق چی (بهتر د خلکو هغه دی چی خیر ئی و خلکو ته ورسیږی) د دغه عالی صفت خاوندان شی چی ټولو مو خپل همنوع ته ورسیږی.

تاسو مامور چی په حقیقت کی د ټولنی خدمتګاران او نوکران یاست تاسو د لته دغه فکر له سره وباسی چی مو ږ به باداری کوو.

ښاغلو مامورینو هر وخت چی پر چو کی کښیناستلاست نو احتراماً له تاسو د اهیله کیږی چی پورتنی لیکنه دریاد کړی چی «تاسو

مامورین په حقیقت کی د ټولنی خدمتګاران او نوکران یاست تاسو د لته د غه فکر له سره وباسی چی مو ږ به باداری کوو» پورتنی توصیه دقانون حکم، د لوی خدای (ج) رضا او د خلکو تسلی ده

(نور بیا)

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)
مهتمم: عبدالکریم طالب
کندهار

میاشتنۍ خپرونه
ادبي، تاریخي، اجتماعي، علمي
اداره: د شهیدانو واټ
د تأسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال اتمه ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۳۴

کالنۍ بیه
په کندهار کې [۲۸] افغانۍ
د هیواد په داخل کې [۳۲] د
په د باندنیو هیوادو کې یو ډالر

د لړم میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

## ددې ګڼې مضامین

| | |
|---|---|
| زموږ د ګران پاچا بختور جلوس | د پښتې دوهم مخ |
| د ملګرو ملتو د پرانستلو تاریخي ورځ | ۱ مخ |
| هیله | ۲ » |
| د روژې نیول فرض دي | ۳ » |
| د امازون په ځنګلو کښې ... | ۸ » |
| تل خوشبینه او خوښ اوسې | ۱۱ » |
| د قرآن عظیم الشان کاڼیزه | ۱۳ » |
| د ادب ګلونه | ۱۴ » |
| موریس مترلینګ | ۱۶ » |
| بابا نانک څوک ؤ؟ | ۱۹ » |
| په پاکستان کې د واده مراسم | ۲۱ » |
| په فضائي لابراتوار کښې ... | ۲۵ » |
| عالي انسان | ۲۷ » |



د اطلاعاتو او کلتور وزیر ښاغلی محمد ابراهیم عباسی په داسی حال کی چی د افغان
فلم په مؤسسه کښی د فلم د دوبلاژ د یوه کارکوونکی توضیحات اوری